د هندوستان پښتانه
مالیر کوټله ( ختیځ پنجاب )
صفیه حلیم
۲۰۰۹

## نا اشنا ټکی

جاگیر- ځمکه او کلی
جاگیردار- هغه څوک چی ځمکه او کلی ولری
پرگنه- د ځمکې یوه برخه
خلعت- قیمتی ټوکر نه جوړ اوږد کوټ یا چپن چی د پاچا له خوا به د یو کس د درناوئ لپاره ورکول کیدو
ضلع- ولسوالي
مها – لوئ
راجه- پاچاه یا واکمن
راجپوت- د راجه ځوئ- د هندوستان یوقام چی دمېړانی لپاره نوم لری
سنگ-سنگه........زمری- دا لقب راجپوت قام سړو د خپل پېژندگلوي لپاره کارو-وروسته د سیک مذهب منونکوهم دا لقب غوره کړو
نذر-نذرانه- تحفه یا ډالئ چی د واکمن د خوشالولو لپاره به ورته وړل کېده- مغلو به ورته پېشکش ویېل
گرو یا گورو- هغه مشرچی نورو ته لاره ښائ
برهمن- د هندو مذهب لوړه طبقه
بېراگی- د هندو مذهب ملنگ
دیوان-مشر وزیر(وزیر اعظم)
چېلا- غلام یا مرید
کوټله- قلا
سادهو- ملنگ یا فقیر
وا یسرائ-په هند کی د برطانوي سلطنت له خوا ټاکل شوی واکمن

## پېژندنه

د صوبه سرحد ځيني خلک کله چی په اباسين جوړ د اټک له پله واوړي نو وايي چې مونږ پنجاب ته ورداخل شو. د تاريخ په پاڼو کې د پنجاب ټکی په لومړي ځل د شپاړلسمې پېړۍ په ورستيو کې د شېرشاه سوري د دور تاريخ ليکونکو وکاروو. له دې وړاندې دا ټوله سيمه د هند په نوم يادېده. د پنجاب نوم دلته بهېدونکو پنځو سيندونو له کبله ورته ورکړی شو- خو په اصل کې دلته شپږ سيندونه دي. د راوي، چناب، بياس، ستلج او د جهېلم نه علاوه د اباسين اوبه هم دلته بهېږي. د هند او پاکستان ترمېنځ دا سيمه له اسمانه چې وګورئ نود يوې دايرې غوندې ښکاري .

دهند برخه يې ختيز پنجاب او د پاکستان هغه يې لويديز پنجاب بلل کېږي.د لويديځ پنجاب سرحد د سلېمان هغه غرونه دي چې دبلوچستان او افغانستان نه يې بېلوي.د پنجاب په دې برخه کې تر ټولومهم ښار جهېلم نومېږي چې د هندوستان نامتو واکمن شېرشاه په کې د روهتاس کلا جوړه کړه. هغه وخت ټېکسلا او کوهستان په پنجاب کې شامل نه وو‌بلکه دا د افغانستان خاوره ګڼل کېدل.

د ختيځ پنجاب سرحد د جمناسيند دی.او پدې کې لوديانه،جالندهر او دپټيالې ښارونه دي. جنوب ختيځ کې د ډيلي او حصار ښارونه دي چې پخوا د اګرې د حکومت برخه وو.خو د ۱۸۵۷م کال نه وروسته انګرېزانو په پنجاب کې شامل کړل. د پنجاب شمالي سرحد د اباسين او د ستلج سيندونه دي چې د بهاول پور او د راجهستان (راجپوتانه)نه يې بېلوي.دلته ددې لرغونی ښار ملتان نومېږي. ددې نه علاوه دېپال پور (پاکپټن)هم لرغونی تاريخ لري.

د انگرېزانو په هند کې د اوسني صوبه سرحد سيمه هم په پنجاب پورې تړلې وه. په ۱۹۴۷ م کې د پاکستان په جوړېدو پنجاب په دوو برخو وويشل شو.د هند پنجاب بيا هم دومره پراخه مځکه لرله چې حکومت په ۱۹۲۲م کې بيا په دوو نورو برخو وويشلو.د يوه نوم هريانه او مرکز يې چندي گړ شو. دويم پنجاب په خپل نوم پاته شواو مرکز يې امرتسر وټاکل شو. دهندي پنجاب د شمال ځينې نورې برخې د هيماچل پردېش په ايالت کې شامل کړی شوی.ددې نه اندازه کېږي چې ددې لويې ځمکې انتظام او اداره څومره گران کار دی.

په هندوستان کې ددې ټولو سيمو په گډون دلته دخلکو شمېره دټولو نفوسو ابله ۲.۵ فيصده کېږي.يعني په هند کې پنجابيان په اقليت کې دي.خو ځمکې يې ټول هند ته د غنمو ۲۲% او د وريژو ۱۰% حاصل ورکوي. له دې پرته په ټول هند کې دپيو(شېدو) او له هغې جوړو شيانو دريمه برخه له پنجابه ترلاسه کېږي. د پاکستان په پنجاب کې د پنجابي وگړو شمېره د نورو ټولو په پرتله زياته ده. يعني د پاکستان د خلکو ۴۴,۵ % په پنجاب کې اوسېږي.او ددغې ځمکې ټول حاصل ۸۰ فيصده غنم پيدا کوي. په ۱۸۹۱ م کې انگريزانو دپنجاب دځمکې کچ يو لک څلور څلوېښت زره څلور سوه او شپږ دېرش زره مربع ميله ښودلو.او دلته هغه وخت پنځه ويشت لکه يو شپېته زره نهه سوه او شپږ پنځوسو کسانو ژوند کاوو.

په دې خاوره اوسېدونکي زيات تره په تېرو پنځو زرو کالو کې د افغانستان او دهغې نه وراخوا د مرکزي اېشيا د خاورو نه په بېلو بېلو پړاونو ورغلي دی.ددې ځمکې شنې او ښېرازې او هوا يې نرمه او معتدله ده. ددې کتاب لپاره مايواځې دهغو پښتنو حال راخيستی دی چې د هند په لوديځ کی د پنجاب د ايالت يو ډېر وړوکی ځای کی مېشت دی- خو د خلکو د تاريخ نه وړاندی د پنجاب د سيندونو معلومات ضرور دی چی د دی خاوری د ښېرازۍ عامل دی-

## د اوبو مزل

د پېښور له تعلیمي ادارو هرکال په سلګونو زده کونکي د اباسین او د کابل سیندونو سیل له ورځي، د اټک سره نږدې څوواړه واړه ټاپوګان دي چې یو په کې کنډ نومېږي. په هندی ژبه کې د اوبو تالاب ته کنډ وای دې ټاپو سره یو ځای کې د ددو سیندونو اوبه یوځای کېږي. مست هلکان یا جینکۍ په اوبو کې ورښکته شي او دا یواځې په ژمي کې ممکن وي چې کله د دواړو سیندونود اوبو زور کم وي.-دوی په لویو تیږو پښې ږدي او هغه ځای ته ځان رسوي چې سنګم نومېږي عام خلک په دې باوري دي چې د دوو سیندونود یوځای کېدوپه مقام که څوک دعاوغواړي سمدستي قبلېږي. دا دود او عقیده له کومه ځایه پېل شوېده هیڅوک نه دی خبرڅوک په دې پسې هم نه ګرځي چې دعاګانې په رښتیا قبلېږي او که نه؟خو د دواړو سیندونو د اوبو بېل بېل رنګونه په خپله یوه په زړه پورې ننداره وي-

اباسین یعنی د سیندونو پلار... او دا نوم ورته بې ځایه نه دی ورکړی شوی، د آرییانو په وېدی سندرو کې وایي چې ددې سیند اوبه د یوه زمري له خولې راوځي. دهندو مذهب له مخې د همالیه په غرونوکې کېلاش نومي غرونو سلسلې کې د دوی تر ټولو قوي اسطوری وشنو چینه ده چې د اباسین اوبه ترې راوځي. د شلمې پېړۍ په سر کې د انګرېز جغرافیه پوهانو یوې ډلې ددې سیند سرچینه معلومه کړه او د دوی معلومات دا وو چې د کېلاش غره نه واورینې اوبه په شمال لویدیځ کې یو سل شپېته(۱۶۰) میله ښکته راکوزېږي او دلته د ګهار نومي یو بل سیند اوبه ورسره یوځای شي بیا دا اوبه چې د

کشمیر له لداخ نه تېرېږي نو بې شمېره لويې وړې ويالې ورسره يوځاى کېږي او کله چې د پاکستان د سکردو په سيمه کې راتېرېږي نو مخه يې جنوب لوري ته شي دلته د گلگت سيند هم ورسره يوځاى شي او د هندوکش د غرونو نه درابڼ ته رارسېږي تر دې ځايه د اباسين اوبو اته سوه دولس(۸۱۲) ميله لاره وهلې وي.

په درابڼ کې ددې لويديځې غاړې ته د صوبه سرحد د بنو او ډېره اسماعيل خان ښارونه دي او ختيځې غاړې ته ډېره غازي خان چې په پنجاب کې شامل دى .دلته دا سيند د غرنيو پښتنو د سيمو وروستې سرحد يا پوله جوړوي. کله چې د چچ په وادي کښې ددې سيند اوبه غورځېږي نو دسيند لمنه دومره پراخه شي چې څو ځايونو کې جبه زارونه پيدا شي دلته پکې کشتۍ هم چلېږي. څلوېښت ميله چې نور مزل ووهي نو د کابل سيند اوبه ورسره يوځاى کېږي اوکه د اټک د پله نه که څوک ښکته ځير شي نو د دواړو سيندونو د اوبو رنگ بېل بېل ښکاري.

زما د ماشومتوب يوه تجربه دا وه چې پلار به راته د اټک پله نه د دواړو سيندونو رنگونه ښودل د اباسين شنې او د کابل ژېړبخنې سرې اوبه ـدلته دا سيندونه ديوه بل په څنگ کې بهېږي او زمونږ لپاره به حېرانونکې خبره دا وه چې دا اوبه ولې يو بل کښې نه ورگډېږي .دواړه سيندونه لږ نور ښکته د اټک د پله نه پورې ختيځ ته چې ورسېږي نو د اوبو رنگ تېز نيلا شي.دا د هغه نيلا رنگو تيږو له امله وي چې د سيند دواړو غاړو ته په اوبو کې پرتې دي.او د اوبو رڼا دا رنگ منعکسوي ، دغه ځاى "نيلاب" نومېږي د نيلاب نه ښکته د اباسين او د کابل اوبه په گډه کالاباغ ته ورسېږي نو ددې مخه جنوب ته شي او ۳۵۰ ميله مزل وهلو نه وروسته متهن کوټ نومې ځاى کښې څلورو نورو سيندونو سره يوځاى کېږي، دلته د پنجاب يو مشهور ځاى "پنج ند" دى خو اباسين ته يواځې ځان له ۴۹۰ ميله لاره اوس هم پاتې وي چې سمندر ته ور

رسېږي.او دا هغه لويه دښته ده چې د گرمۍ له کبله پکښې ډېرې اوبه په هوا کښې ياپه شگه کښې ورک شي. خود اباسين اوبه اوس هم ډېرې وي ځکه په دې کې د شلو نورو سيندونو اوبه ورگډې شوې وې چې د سپين غر او چترال نه واخلې د سليمان د غرونو نه راماتي وي. له کومو ځمکوچې دا سيند تېرشوی دی ددې ساحه ۱,۱ ۲۵,۰ مربع کلومېټره ده. دسيند د غاړې وروستی ښار ''جام شورو'' دی اودلته دا اوبه د يو لوي ډنډتر جوړېدو وروسته سمندر ته ځان وسپاري.ددې سيند اوږدوالی درې زره يو سل او اتيا کلومېټره دی.

د اباسين تر ټولو زوړ نوم په ويدي سندرو کښې يادېږي چې ورته ''سپتا سيندهو'' وايي يعني اوه سيندونه دا ځکه چې ددې په شپږو څانگو کې يو بل سيند هم ورگډ وو چې ''سرسوتي''نومېدو او په لرغونو وختونو کې د سنده ايالت په شگو کې ورک شو. په سانسکرت ژبه کې دا سيندهوس نومېږي، د اوستا په مناجاتوکې سيندهوس بيا هيندوس شو هم دغسې سپتا،هپتا شو،ځکه په زړې باختری ژبه کښې د ''س''غږ په ''ه''اوړي .د هند ټکي له پارسي نه يوناني ته کډه وکړه او په دې ژبه کې ''ه''په ''يا'' اوړي.هندو، يندو بيا اندو او اخرترې انډيا شو .يونانيانو'' سيندوس'' بيا انډوس(انډس) کړو.

کله چې لرغونې ويدي سندرې وليکل شوی نو دوی ته يې ''ريگ وېد ''وويل او په دې سندرو کې د سيندوس ذکر ۱۷۲ ځلې راغلی دی.

ددې سيند په غاړه په۳۳۰۰ ق م کښې ښارونه آباد وو چې د شلمې پېړۍ په پيل کښې انگرېزانو رابرسېره کړل. د هړپه او د موهنجوډارو لرغونو ښارونو تمدن ته د ''انډس تمدن ''يعني د ''اباسين تمدن''نوم ورکړی شو. دلته د موندل شويو توکيو څانگړتيا دهند په لويه وچه کښې د دوو سوو نه زياتو ځايونو کې په نښه شول.په افغانستان کې د آمو سيند په غاړه په شور توغه

کښې هم ددې تمدن آثار پېدا شول ، د کندهار منډیګک او د ژوب رڼا غونډۍ د انډس تمدن ښې بېلګې دي.
په ۳۲۲ ق م کې د یونان اسکندرمقدوني د ټېکسلا (تاکشاشیلا) کې د راجه امبهي مېلمه شو، د یونان د لښکرو یوه برخه کال وړاندې د خېبر د درې د لارې د اباسین تر غاړې رسېدلې وه او د خپلو هغو ملګرو لپاره پر اباسین د تېرېدو لپاره یو مضبوط پل جوړکړی وو چې داسکندر تر مشرۍ لاندې د لغمان،کونړ ،چترال او د باجوړ له لارې ورغلي وو. امبهي اسکندر ته د خپل سیال د جهېلم راجه پورس پر ضدد پوځي او مالي مرستو ژمنه کړې وه.
جهېلم سیند
د اباسین نه پورې جنوب لوري ته جهېلم د یوه لوی سیند پر غاړه د اباد سلطنت نوم وو. دا سیند ویتاستا نومېدو.چې په پخوانیو ویدي سندرو کې یې ذکرشوی دی. ددې سیند سرچینه هم د همالیې غرونه دي او ددې اوبه چې کله د کشمیر د سرینګر ښار نه تېرېږي نو هلته د اباسین اوبه ورسره ګډېږي، دا ګډې اوبه د بارامولا نومې تنګئ نه په تېرېدو مظفرآباد ، بلتستان،هزاره او آخر جهېلم ته ورسېږي. ددې سیند اوږدوالی ۷۷۲ کیلومټره دی او په جهېلم کې د دې اوبه دومره پراخه شي چې ټاپوګان په کې پېدا شي.
اسکندر، راجه پورس ته پیغام ور واستوو چې ده ته تسلیم شي خو هغه ورسره د جنګ اعلان وکړ. په اول جنګ کې اسکندر ماتې وخوړه خو ددویم ځل لپاره یې په شپه کې خپل پوځ په یو ټاپو کې پټ کړ او سهار یې د پورس په پوځ یرغل وکړ او ماتې یې ورکړه. د جهېلم سر زوره اوبه د یونانیانو لپاره یو لوی ګواښ و نو کله چې دوی بریالي شول نو ددې په ختیځه څنډه کې یې جشن جوړ کړ او داسیندیې د خپل یو اسطوري هایډاسپس په نوم ونوماوه. د جهېلم سیند دبهیره،خوشاب،ساهیوال،جهنګ اودملتان دلارې بهاولپور ته رسیږي، دلته د بیاس د سیند اوبه ورسره ګډ شي او د چناب سیند ته په رسېدو اخر د

اباسین برخه شي. د جهېلم د سیند په غاړه اسکندر مقدوني د خپل اس بوکا فیلا په نوم یو ښار هم اباد کړ، دغه اس د زوړوالي له امله دغلته مړ شوی و. هم د دې سیند په غاړه د روهتاس مشهوره کلا ده چې شیرشاه سوري جوړه کړې وه.

چناب سیند

د کشمیر په لوړو غرو کې د واورینو اوبو دوه لوی جهیلونه دي چې یوه یې چندرا(سپوږمۍ) او بله یې بهاګا(تقدیر) نومیږي..د اوبو دا دواړه چینې په شمال لویدیځ کې د جمون نه تر کشتواړه ۱۳۰ میله مزل وهلو نه وروسته په اباسین کی ورګډ شی خو لږ ښکته بیاد اباسین نه بېلي شی، سیالکوټ او وزیر ابادد ښارونونه په تیریدو د جهنګ نومې ښار شګلنې ځمکې خړوبوي. په دې لاره دا اوبه د چناب په نوم یادیږي خو په لرغوني وېدی سندرو کې دا اشګینۍ بلل شوي دې. د پنجاب په اولسي داستانونو کې دا سیند لوی نوم لري د پنجابي ژبې دوه د مینې داستانونه هیر رانجها او سوهني مهینوال هم ددې سیند په غاړو جوړ شوي دي. د ۷۲۵ میله مزل وهلونه وروسته دا سیند د دوو نورو سیندونو ستلج او بیاس په بدرګه پنجند کې د اباسین سره یو ځای شي..

ستلج سیند

د پنجاب تر ټولو لوی سیند ستلج ( ست لوج) دی اوږدوالی۱۴۴۸ کلومیټر دی. د اباسین په څیر د دې اوبه هم د کېلاش له غرو سرچینه اخلي خو په لاره کې ورسره بې شمېره لوی او وړې ویالې ورګډیږي، همدا ده چی په سانسکرت کې ورته "سوتودرو" وايي یعني د سلو سیندونو سیند. د دی اوبو مخه ختیځ لوری ته وي، او دسوالک دغرونو نه د هندوستان د بلاس پور او روپړ ته چې رسیږي نو په دوو برخو ووېشل شي. دلته د لودیاني مشهور ښار دي، کله چې د پاکستان د پهلور او پتن ته رسیږي نو د بیاس اوبه ورسره ګډې شي. دا

سیند د خپلو یخو اوبو او کبانو لپاره ډیر نوم لري. ځیني خلک ورته لال دریا یعني سور سیند وایي ځکه د سرو خاورو له کبله د دې رنګ سور دی.

راوی سیند

د سړو اوبو دی سیند ته د لاهور سیند هم وایي ځکه د دې سیند په ختیځه غاړه د لاهور ښار اباد دی. په وېدې سندرو کې دا په دوو نومونو یاد شوي دي، پارو شاي او اراوتي. په لرغوني یونان کې دا" هایډراوټس" نومېدو. د دې اوبولاره لنډه ده اود کشمیر د کانګړه غرونو نه راوځي. هلته دا سیند ډیر سپېڅلی ګڼل کیږي. په لویدیځ کې د دې اوبه د پنجاب له غریزې سمیې چمبه ته چې را ورسیږي نو د دې نوم راوي شي. بیا د جمون نه شل میله ښکته یو بل سیند "توي" په کې ور ګډ شي. دیرش میله ښکته د راج پور په میدانونو کې ځلور سوه کاله پخوا مغل واکمنو د دې اوبو نه یوکانال را ویستلی وو چې نهرشاهي نومیږي او اوبه یې د لاهور ښار ته رسیږي. دهند په ګورداسپور او امرتسرښارونو کې له دې سیند ځای ځای نهرونه او ویالې ویستل شوي دي نو ځکه تر لاهوره د دې سیند اوبه ډیرې کمې پاتیږي. د لاهور ښار نه تاو را تاو د دې دوه برخې جنوب لویدیځ کې بیا یوځای شي، ساهیوال او ملتان ښارونو ته ځان رسوي او همدلته د چناب په اوبو کې یوځای شي. یو مهال په دغه سیند کې لویې سوداګریزې کښتۍ چلېدی او پنجاب ته به یې مالونه رسول.

بیاس سیند

اسکندر مقدوني چې کله د جنګ جګړو له لارې د پنجاب لویه خاوره ونیوله نو د هند د نورو ځمکو د را لاندې کولو هوس یې لا په زیاتیدو شو. هغه خپل پوځ د پنجاب د وروستي سیند بیاس پورې را وستو خو دلته د ده په عسکروکې خپل وطن ته بیرته د ورتلو ارمان پیدا شو. اوس دوی په هیڅ شان نه غوښتل چې وړاندې ولاړ شي. اسکندر ورته د هغه مال او دولت او زرو جواهرو یادونه وکړه چې د ګنګا جمنا په وادیو کې یې پاچاهانو لرل خو هیڅ

اثریې پرې ونکړو. بیاس د دوی وروستی حد و او په یوناني ژبه کې دا سیند هایفاسس نومیږي.
د دې اوبو سرچینه د هند د پنجاب د لاهول وارین غرونه دي. د کانګړی نه دا په شمال لویدیځ کې د سوالک د غونډیو نه تاو را تاو بهیدو وروسته لومړي جنوب اوبیا جنوب لویدیځ ته مخ کړي. د هوشیارپوراو ګورداسپور د ښارونو ترمنځ تېرېدووروسته د امرتسر او کپور تهله ته رسېږی او بیا پتن کې د ستلج له خړو اوبو سره یو ځای شي. ۴۷۰ کیلو میتره اوږد دا سیند په سانسکرت ژبه کې" دیاسا" نومیږی خوځای نومونه هم لري لکه دیپاسه، بیاسچه، بیاند ، ویاه او بیپاشه او یو ځای کې ارجیکی هم ورته وای..
د سیندونو د اوبو شخړه
د پنجاب د ټولو سیندونو سرچینه د همالیې په غرونو کې د هند په خاوره کې ده. د هند د وېش نه وروسته دواړو هیوادونو د بریښنا او د کرکرهنې لپاره د بندونو د جوړولو اوداوبو د مخې د اړولو اختیار غوښتو. د ویش نه وړاندې هم د انګریزانود حکومت پرمهال د پنجاب او سنده دصوبې په منځ کې په ۱۹۴۲ کې دا شخړه را پورته شوې وه. پنجاب بره دخپلی خاوری نه د تېرېدونکی سیندونو اوبه د خپلو ځمکو د خړوبولو لپاره غوښتې او ښکته د سنده ایالت دا خبره نه منله. هغه وخت د اوبو شخړه نا حله پاتې وه. په ۱۹۴۷ م کی دا شخړه بیا را پورته شوه چی د پاکستان او هند ترمنځ به دا اوبه څنګه وېشل کیږي. نو هم دا وه چی د پاکستان او هند حکومتونو د اوبو په سر خبری پیل کړې چې په پای کې په ۱۹۶۰ م د ستمبر په میاشت کې د نړیوال بانک په مرسته د دواړو هېوادونو ترمنځ د اباسین( انډس) په نوم یو تړون په کراچۍ کې لاسلیک شو. د دې تړون له مخې د اباسین،جهېلم او د چناب د اوبو کنټرول به د پاکستان په لاس کی وې او د ستلج، بیاس او د راوي سیندونو اوبه به هند کنټرولوي. هندوستان ته دا حق هم ورکړی شو چې

د پاکستان د برخې په دریو سیندونو اباسین، جهېلم او چناب غېر زرعي پراجې جوړولی شي. عملا د دې خبرې مانا دا وه چې د کر د ځمکې لپاره د سیندونو د اوبو مخه نشي اړولې خو که د بریښنا لپاره ورباندې بندونه جوړوي نو جوړولی شي. همدا وه چې هندوستان په ۱۹۹۹ کې د چناب سیند په اوبو د بګلیهار(بګلي یار) نومې د بریښنا د بند جوړولو په کار لاس پورې کړ نو پاکستان ور باندې سخت خپګان څرګند کړ.

نور سیندونه

د پنجاب له اوبو پرته دوه نور سیندونه داسې دي چې د پښتنو لپاره تاریخي ارزښت یې له پامه نشي غورځیدی. د ګومل سیندچې ځینې خلک ورته ګومله وایي ، د افغانستان له غزني ولایت نه سرچینه اخلي، له پکتیا ولایت را تیریږي ، یوه څانګه یې له کټواز نه را وځي او دویمه یې د دې نه څوارلس میله ښکته ورسره یو ځای شي. په ویدي سرودونو کې دا سیند د ګومتي په نوم یاد شوی دی. ددی اوبه قریبآ یو سل او لس میله مزل وهی. د ګومل اوبه د جنوبي وزیرستان د صوبه سرحد د ټانک ولسوالۍ په ګرداوي کې د کرکرهنې لپاره کاریږي او په کلاچي کې د دامان نه تیریږي . وروسته د ګومل اوبه په کجورۍ کې د ژوب له اوبو سره یوځای او په پای کې د ډېره اسماعیل خان نه شل میله جنوب کې په اباسین ور ګډیږي.

یو بل تاریخي سیند د کرمې ( کورمی ) سیند دی، د دې اوبه د سپین غر د جنوب نه را وځي. د پکتیا نه په تیریدو پاړه چنارد پېواړ درې نه تیریږې او د کوهاټ سیمې ته را وځي، وروسته د بنو له میدانه تیریږي او اباسین ته ځان ورسوي. په رګ وېدا کې دا سیند د کرومو په نوم یاد شوی دی. د کرمې سیند قریبآ دوه سوه میله مزل وهي اود دې اوبه تر ډېره د اوبه خوړ او د کرکیلې لپاره کاریږي.

# پاچا او ملنګ

د سلېمان د غرونو په لړۍ کې د اوسني ډېره اسماعېل خان ښار په لوېدېځ کې د غرو لمنې خاص دامان نومېږي او همدلته يوه وړه دره اوس هم د درابڼ په نوم يادېږي.دا دره دولس مېله پلنه او يوه وېشت مېله اوږده ده، يو مهال يې ځمکه شنه او له ونو ډکه وه. دلته هغه وخت واړه واړه کلي و چې په کې لس دولس کورنيو ژوند کاوه، هر کوريوه کوټه لرله چې د غره په ډډه کې به جوړه وه. د دېوالونو د پاسه به يې د لرګيو چت و چې په کې د لوګيو د وتلو لاره جوړه شوې وه. د کوټو دروازې به نه وي او د شپې به يې په ازغنو بوټو او لويو دړو بندولې.په ژمي کې به د کوټې په منځ کې اور بلېده او خلکو به د پسو په وړيو کې ځانونه تاوول او د اور چاپېره به وېده شول.د رڼا لپاره به يې د ځلغوزو د ونو شوښتې کاروله چې په غرونو کې ډېرې کېدلې.
په پنځلسمه پېړۍ کې دلته د متی خېلو سروانيانو چې نېکونه يې د غور نه ورغلي و ډېره و. دوی د لودي ټبر سره خپلوي لرله، خلک يې ميانه قد ، قوي غړي اوخړې غټې سترګې يې لرلې. سړيو به د کمېس پرتوګ د پاسه يوه توره شړۍ له ملا تاووله او بله به يې په اوږو غوړوله. د څرمنو څپلۍ به يې په پښو وې او يو ځوګزه سپين کتان به يې د پټکي په توګه د سر نه تاوکړي و. ښځو تر ډېره تورې کوچېانۍ جامې کولې. سروانی مشرانو د ملتان وربښمن لونګۍ په سرولې، عام خواړه يې د جوارو ډوډۍ، کوچ او کروت ووخو کروت يوازې هغو خلکو خوړی شو چې پسونه يې لرل د غنمو ډوډۍ يې يوازی په اختر او برات کې خوړله. د دوئ په ځنګلونو کې به د زېتونو ونې هم وې چی د هغې زېتون به يې وچول او خوړلو لپاره به يې په اوبو کې وېشوول. د ځنګله

نه به يې انار هم را شکول او د توتانو ونو خو به ورله هر ډول توتان ورکول، ځلغوزي هم ورته ډېر رسېدل.
سروانپانو تر ډېره کروندې کولې او د للمې په ځمکو کې به يې جوار او غنم کرل. دوی د شپانو په راکړه ورکړه خپلې اړتياوې پوره کولې، د لور په سر به يې ولور نه اخيستو او کله به چې لوڼه يې ودولې نو پسول(جهېز) به يې ورله ورکاوه. دوی خپل ټول کارونه په خپله کول اوخدمتګاران ياغلامان يې نه لرل.
په سروانيانو کې د ديني ازدکړو شوق تر نورو قبايلو ډېرو او په څوارلسمې ميلادي پيړۍ کې د درابڼ په ډېرو کورنيو کې لوستي خلک موندل کېده چې د ځېنو شهرت خو يې آن خواوشا سېمو ته هم رسېدلي و. په دوئ کی شېخ سلېمان دانا ، شېخ ملي، شېخ احمد نومونه دياد وړ دی. يو وخت د تصوف په تذکرو کې د درابڼ د صوفېانو او اولېاوو نومونه له ډېرشو واوختل.
د پينځلسمې ميلادی پيړۍ د ۱۴۳۰ کال تېر شوی دی. دا هغه وخت و چې له پښتنوسيمو جوپه جوپه ځوانانو د بهلول لودي په لښکرکې د جنګ لپاره ځانونه شاملول. د شېخ صدرالدين پلار شېخ احمد سرواني په درابڼ کې د ژوندي پېرپه نوم شهرت لرلو. د څوئ زړه يې غواړی چی د اسلام رڼا د پنجاب سيمی ته خپور کړی او له بوې قافلې سره د اباسين ، چناب او راوي د سېندونو پورې ولاړ. د پټيالی سره نږدی د ستلج د بوی وبالی په غاړه په يوه وړوکي کلي کې بې واړول چی بهومسی يا جهومسی نومېدو.
شېخ صدرالدبن د ورځې کارمزدوري کوي او شپه په عبادت ربوي. لږه موده وروسته دلته د مالېر (ملېر) په نوم بو نوی ښارګوټی ابادوئ. د هند پاچا بهلول لودی ورته خپله لور په نکاح کوئ او ده ته د صدر جهان خطاب ورکوئ.
وروسته د شېخ صدرالدبن او د مالېرد ابادېدو په اړه تاريخ په بوداستان بدل شو. په دی اړه د حيات افغاني ليکوال واي."هغه وخت د مالېر نښې نښانې هيڅ موجودی نه وې خو د جهوم په نوم يو کوچني کلي کې د شيخ صدرجهان

عبادت ځای موجود و او په هغه وخت کې یوه ضعیفه مسلمانه ښځه چې د
مالي قام نه وه هلته لا پخوا اوسېدله. دغه ښځه لومړی د شیخ معتقده او بیا
یې مریده شوه. کله چې صدرجهان د سلطان بهلول لودي د لور سره نکاح وکړه
نو دلته یې د یو کلي د جوړولو نیت وکړاو د مالي د نوم سره یې د (ر) توری
چې د رب لومړی توری دی یو ځای او له همدې امله په دغه ځای د مالېر نوم
کېښود".

د هندي سرچینو له مخې دا ځای د ملېرسنګه نومې راجه لخوا د خښتو جوړ
بوې کلا نوم وچی ملیرګړ نومیده. صدرالدین د بهومسي نومې کلي کې په
یوه جونګړه کې اوسیدو چې ملیر ته نژدې وه دا کلا د لرغونو وختونو نه ورانه
وه خوکله چې د صدرالدین د جونګړې شاوخوا خلکو ژوند پیل کړ نو د دې
پخوانی نوم مالېر(ملیر)هماغسې د خلکو په ژبه پاتې شو. مالي قام په پنجاب
کې میشت و او د دوی په نوم ملتان ښار اباد شوی وو چې لومړی مالستان،
مولستهان او بیا مولتان شو.

د مالیر په اړه د خلکو یوه بله مشهوره کیسه هم شته، دا چې یو وخت د ستلج
سیند نه راوتلی ویاله د شیخ صدرالدین جونګړې ته ډېره نژدې بهېده یوه ورځ
شیخ د سیند په اوبو کې د پښې د وینځلو لپاره چې خپله پڼه (پایزار) وویسته
نو هغه ترې په اوبو کې لاهو شوه، له خولې یې را ووتل چې "ځه نو زما له پڼې
سره ته هم ورکه شه" له دې خبرې نه یې مطلب اوبه وې. له هغې راهیسی د
ویالی اوبودمالېر کوټلې نه خپله لاره بدله کړه او اوس له دې ځای سل
کیلومټره لېرې بهیږي، دا خبره رښتیا ده چې د ستلج سیند اوبو خپله لاره
بدله کړې وه خو د پنجاب ځینو سیندونو د وخت په اوږدو کې ژوواړې د اوچ
کالئ او سېلابونو له کبله خپلې لارې بدلې کړې دي.

د بهلول لودی سره د شیخ صدرالدین د لیدنې په اړه هم د ده عقیدت مندان
یوه کیسه کوئ. دی یوه شپه د خدای په ذکر بوخت و بهرسېلۍ را الوځی، د

ده د جونګړې ډېوه نه مړه کېږي. بهلول له خپل لښکربېلیږی او لاره ورکوی. په دې تورتم کې ددې جونګړې بله ډیوه د بهلول لپاره حیرانونکې وه، خو ده د شیخ صدر الدین سرواني په تندي د پوهې او تصوف نښې لیدې، هغه ته یې وویل دعا راته وکړه چې د ډیلی پاچا شم او په زړه کی واېې که زه د هندوستان په تخت کښېناستم نو صدرالدین ته به خپله لور ورکوم. شیخ ورته دعا کوئ او بهلول چې د خپل لښکر سره یوځای شونوملګروته یې داکیسه وکړه. څوکاله وروسته چې دی د ډیلی په تخت کښیناست نوشیخ صدرالدین ته یې خپله لورتاج المرصا په نکاح کړه. د لور په پسول کی بې ورته دولس کلي د جاګیر په توګه ورکړل چې د شپږو نومونه یې داسی وو، مالېر،برناله، پهول، امرګړ، لونګه وال او اسلوه.

د صدرالدین د اوسني زیارت شاوخوا او په خپله په مالېر کوټله کې د هغه وخت په اړه داسې کیسې نوری پوښتنی پېدا کوئ. که د مالېر په نوم ځای موجود نه وو نو دا څنګه امکان لري چې بهلول لودي دا د لور د پسول په دولسو کلیو کې شامل کړو. د مالېر کوټله ځینې خلک دی خبری ته د شک په سترګه ګوری چی ګوندی هغه دروېش وو. دوئ باور لری چی صدرالدین د بهلول لودی د یو قوماندان ځوئ ووځکه په تاریخ کی داسی هیڅ بېلګه نشته چی یو پاچا دی خپله لوربو دروېش ته په نکاح کړی وی. خو ددی خبری د امکان لپاره به پخپله د بهلول لودی شخصییت ته وګورو. داسې ښکاري چې بهلول په اولیاو ډېر باور لرلو.

د پټیالې نه دولس مېله جنوب لوري ته د سامانه لرغونې ښاریه ده. د دولسمې پیړۍ په وروستیو کې دا په لومړي ځل شهاب الدین غوري ونیوله او دلته یې یوه پوځي چاونۍ جوړه کړه دا هغه مهال و چې د دین د تبلیغ لپاره به صوفیان له افغانستان نه هلته ورتلل. یوه ورځ بهلول د قطب خان( چې وروسته د ده یو امېر شو) او خپل تره ملک فېروز سره سامانې ته روان وچی یو ملنګ ورته

مخې ته راغی. دی سید انام یا سید ابن انام نومېدو(مرقع افغان- او طبقات اکبری) ملنګ ورته وویل " په تاسو کې څوک شته چې د ډیلی پاچايي په دوو زرو سیکو واخلي؟" بهلول سره شپاړس سوه سیکې وې. ده هغه ملنګ مخې ته کېښودې او ورته یې وویل "نورې نه لرم" ملنګ پیسې واخیستې او ورته یې وویل پاچاهي تا ته مبارک شه . په لاره کې خپلو ملګرو ورپورې ټوکې ټکالې کولې چې پېسې یې وبایللې، بهلول ورته په ځواب کې وویل که د ملنګ وېنا ریښتیا وي نو بیا مې ارزانه سودا کړې ده او که نه د یو ملنګ خدمت مې وکړو، دا هم ثواب لري .

بهلول لودي د عالمانو او دیني بزرګانوډېردرناوی کاوو. ده په لاهور، ملتان او دیپال پور کې دیني مدرسې هم جوړې کړې وې. دده ځوئ سکندر لودي هم خپله یوه لورشاه عبدالجلیل ته یې واده کړې وه چې لقب یې چوهړبندګي و. شاه عبدالجلیل د بهاول پورنه دیپال پور(پاک پټن)او بیا لاهور ته ولاړواو د ملتان او لاهورپه مېنځ کې د غوریانود وخت ښارچې کوټ کروړنومېږي، میشت شو. دلته د شاه عبدالجلیل په لاس د راجپوت هندو قام ډېر خلک مسلمانان شول. شاه عبدالجلیل هم د صدرالدین په شان خپله روزي په خپله ګټله، غنم به یې په خپله په مېچنی اوړه کول. د ده په ارادت مندانو کې شیخ موسی آهن ګر او شیخ زین الدین غازي شامل وو.

د مالېر کوټله د نوابي کورنۍ په تاریخ کې لیکلی دی چې بهلول خپل زوم صدرالدین په خپل دربار کې د قاضي په توګه ټاکلی و نو ځکه د ده لقب صدرجهان د ده د شهرت سبب وګرځېد. بهلول لودی د خپلې لور په پسول(جهېز) کې شپږ پنځوس نور کلي هم صدرالدین ته ورکړل او درې لکه روپۍ د کال نغدې به یې د خرڅ لپاره ورلېږلې .

د مالېرد تاریخ نه وړاندې به د دې سېمې د نورو مشهورو ځایونو تاریخ ته وګوروچې نومونه یې بیا بیا یادېږي. د پنجاب دا سېمه دوآبه په نوم یادېږي او

علت يې دلته د دوو سېندونو راوي او د ستلج اوبه دي. سلطان بهلول لودي کله چې د هندوستان پاچا شو نو په دې کلونوکې بې شمېره پښتانه د سليمان د غرونو او نورو ځايونو نه د پنجاب په لورې و لاړل، په دې سېمه کې د پښتنو ميشتېدل د لسمې پېړۍ راهيسې پېل شوي وو. د"افغان نوبيليتي او مغل" نومې کتاب لېکونکی ريتا جوشي وايي"د پټيالې په خواوشا د افغانانو داسې بې شمېره مېشت ځايونه موجود وو، دوی ځمکه وال وو او کر کرونده يې کوله ځينې افغانان يواځې په ښارونو کې اوسېدل". د دې لېکوالې خبره رېښتيا ده ځکه چې اوس هم په ختيځ پنجاب کې بسی پټهانان(د پښتنو کلی) او د سلطان پورغوندې ښاريي شته چې پښتنو اباد کړي دي خو اوس په کې يو تن پښتون هم نه موندل کېږي. استاد رشاد په خپل کتاب (لودي پښتانه کې لېکلي" د سرهند په شاوخوا کې بهلول پور- يا بهلول پوره نومې ځای شته" او بيا د بابرنامې له نقله وايي"د بهلول پور کلا د چناب د سيند پر ژۍ په يوه لوړ مواقع ده".

د لاهور نه ډېلي ته تلونکي په لوی شېرشاهي سړک مالېر کوټله نه شل کيلو متره ختيځ کې د سرهند ښاريه ده چې د لويديځ لخوا ورتلونکو لپاره دا ځای يو مهم پړاو وو. د ملتان د لرغوني ښار په شان دلته هم يوه غونډۍ ده چې د پخوانيو وختونوراهيسی وربانديې يوه دفاعي قلا جوړه وه. په ۲۰۰ ق.م کې دا ځای د "ستودرا ديش" په نوم يادېدوچې وروسته" شيتوتو" شو، همدغه نوم د ستلج سيند لپاره هم کارېدو. د مېلاد نه وروسته دا ځای دافغانستان د کوشاني واکمنو لپاره هم يو مهم مرکز وګرځېد او په دوېم ميلادي پېړۍ کې دا ځای د هندو شاهي پاچايانو پلازمېنه وه. د لسمې ميلادي پيړۍ په وروستيو کې دلته راجپوت چوهان هندوان ميشت وو، خو د غزنوي او غوري تر حملو وروسته دا يوه پوځي چاونۍ شوه. وروسته د ډېلي د تخت ساتنې

لپاره د سرهند ساتل ضروري وګڼل شول. د دې ځای والي به پاچا پخپله ټاکلو او سرهند به چې د هر چا لاس ته ولوېدونو مهم برى به يې ګڼلو.
د ډېلي د سلطنت تر اخيستو وړاندې بهلول لودي د خلجي پاچا محمد شاه لخوا د سر هند والي ټاکل شوی و. بيا سلطان بهلول لودی خپل دوه زامن خواجه بايزيد اوشهزاده نظام(سکندر لودهي) پرله پسې د سرهند واليان ټاکلي و. بهلول خپله يوه لور چې سبحان نومېده د سرهند يووالي ته په نکاح کړې وه چې لقب يې مېر مېران و. د دوئ دواړو قبرونه د سرهند په شاهي هديره کې اوس هم شته او د سبحان د قبر په شناخته د هغې د مړينې نېټه ۹۰۱ هجري قمري او د ۱۱ صفرى مياشت ليکلې ده. خو د هند د عامو مسلمانانو لپاره په سر هند کې د شيخ مجدد الف ثاني زيارت مهم دی چې د اکبر پاچا د نوي دين (دين الهی) پر ضد يې مبارزه کړې وه او د سيکانو لپاره دا د ګورو ګوبند د ځامنود يادګار لپاره اهمييت لری چی د مالير کوټله په تاريخ کی يوه مهمه پېښه وه. دلته د افغانستان پاچا شاه زمان هم خښ دی.
دا چې ځايي راجاګانو صدرالدين ته څومره احترام لرو په ۱۴۵۸ م کې د کپور تهله د رياست نواب رائ بهرام بهادر بهټی خپله لور شيخ ته په نکاح کړه يعنې د بهلول د لورسره د واده نه څلور کاله وروسته صدرالدين دوېم واده وکړو. دا مېرمن د بهټياني جي په لقب وپېژندل شوه. او ښايي د راجپوت دود سره سم ورته په جهېز(پسول) کې کلی اوځمکی ورکړل شوی وي.
د شيخ صدرالدين درې زامن وو چې مشر يې حسن، دويم يې عيسی او دريم يې موسی او يوه لور وه چې د بي بي منګي په نوم يې پيژنو. خو د مالير کوټله د نواب کورنئ تاريخ ليکونکې عنايت علی خان ليکی د صدرالدين د لور هيڅ زکر نه دی کړی. دی حسن د تاج المرسا او عيسی او موسی د بهټياني ځامن ښاي.

د پینځلسمې پیړۍ په وروستیو کې شیخ صدرالدین خپله لوربي بي منگي د توهانه په یوې مسلمانې کورنۍ کې واده کړله. توهانه په ختیځ پنجاب کې اوس د هند د هریانې په ایالت کې شامله ده. ځینې سرچینې وایي چې د توهانه دا کورنۍ راجپوت وه او د غوریانو په وخت مسلمان شوی وه. د بي بي منگي اولاد نه لرلواو د واده نه پنځه کاله وروسته یې خاوند مړ شو. د خاوند ځلوښتي یې چې پوره شوه نو خسرگنۍ ورته د دویم واده وویل. د هند راجپوت قام د کونډې په واده ټینگار نه کوي او په هند کې ځینې مسلمانان اوس هم د کونډې دویم واده یو عیب گڼي خو داسی ښایي چې د بی بی منگی خسرگنئ با خو په اسلامی اصولو ټینگه وه او با ببا د مزکی او د مال شخړه وه. کېدېشی بي بي منگي مجبوره کړې شوې وې چی د خپلې خوښې خلاف خپل لېور او یا په نژدې خپلوانو کې چاته په کنښني. هغې خپل پلار ته پیغام واستوو چې ځوک دی ورپسې راشي، صدرالدین خپل مشرزوی شیخ حسن ته وویل چې توهانې ته ولاړ شي او خپله کونډه خور ورسره راولي. حسن دا خبره و نه منله او ځرگنده نه ده چې د هغه د انکار سوب څه و خو داسې ښکاري چې پلاراو زوی ډېرې ورځې په دې تېرې کړې.

د مالېر کوټله د خلکو روایت دی چې یوه ورځ بي بي منگي په خپله کوټه کې ناسته وه ، د هغی خسرگنئ له خوا دوه جوړه جامې چې یوه یې سره او بله یې سپینه وه ورته راوړل شو چې باید یوه په کې خوښه کړي. د سری جوړې مانا د دویم واده منل او د سپینې مانا کفن و یعنې مرگ ته دی تیاره شي. یو روایت دا دی چې بي بي منگي سپینه جوړه واغوسته او د شپې په تیاره کې له کوره بهر ووتله. بهر ورته د پلار له خوا ورلېږلی کسان ناست وو ، دا یې له ځانه سره کړه اومالېر ته یې را وسته. خولیکلی تاریخ وای چې شیخ صدرالدین کله چې د شیخ حسن نه ناهیلی شو ، نو خپل دوه کشري زامن عیسی او موسی لور پسې واستول. دا چې دوی څنگه خپله خورپه خوندي ډول پلارکره راوسته په

دي اړه معلومات نه شته، خو شیخ صدرالدین د بي بي منګي په لیدو خوشحاله شو. اوخپلو دوو زامنو ته یې په دې الفاظو دوعا وکړه " دیغ (دیګ) تیغ (توره) فتح" یعنې رزق موډېر، په توره مو برکت او بریالیتوب مو په برخه شي. د مالېر کوټله خلک چې اوس هم چاته دوعا کوي نو همدغه درې ټکي یادوي. د بي بي منګي قبر په توهانه کې دی او څرګنده نه ده چې دا په کومو حالاتواو شراطو کی بېرته ولاړه، دوېم واده یې وکړو که نه؟
.لږه موده وروسته د صدرالدین دریم زوی شیخ موسی ناروغ او مړ شو، او د هغه هیلې په خپل وروستي زوی عیسی پوری وتړل شوی. . د شیخ صدرالدین د مړینې په نېټه کې د اوو کلونو توپیر لېدل کېږي، د ده په مزار١٥١٥ میلادي کال او د تاریخ په پاڼو کې د ده د مړېنې نېټه ١٥٠٨ لیکل شوې ده. هغه د خپل مرګ پرمهال یې وصیت وکړ چې د ده ځای ناستی به د ده کشر زوی عیسی وي خو په دی وصیت د هغه په دوو زامنو کې د تربګنۍ داسې زړې وکرل شوچې دغه کورنۍ یې سره وویشله. د تېغ او د توری وضاحت د مالیرکوټله هغه خلک چی ځان ته منجاور وای داسی کوئ. د شېخ هغه ځامن چی دده امر یې ومنلو ورته د تېغ او د فتح دعا وشوه، دوئ نوابان شول او هغه چی د پلار امر یې ونه منلو هغه ته یې د دېغ ( دېګ) دعا وکړه او د هغه اولاداوس دده په زیارت د پخېدونکو دېګونو له برکته ژوندی دی. یو ساده وضاحت چی خلک یې کوئ دا دی چی حسن د مسلمانی مېرمنې ځوئ و نودده اولادونه د صدرالدین د ذیارت منجاوران او د راجپوت مېرمنې اولادونه نوابان شول. خوکه حسن د تاج المرسا ځوئ و نو دې د هندوستان د پاچابهلول لودي لمسې او د سکندر لودي خورئ و. تاج المرصا به په دې خوشحاله نه وی چې د مشر زوی شیخ حسن حق دې وخوړل شي. د صدرالدین د وصییت تر مخه دجاګېر په اړه داسې پرېکړه وشوه چې د بهلول او سکندرلودی لخوا چې کومې ځمکې شېخ صدرالدین ته ورکړل شوې وې هغه

به ټول شیخ حسن اودده اولادونوته رسېږي. کومې ځمکې چې شیخ صدرالدین ته د دواړو مېرمنو تاج المرصا او بهټیاني په جهېز کې ورکړل شوې وې، هغه به د شیخ عیسی او دده د زامنو وي. په دی کی نه د نوابئ ، نه د منجاورئ او نه د یو یا بل ځوئ سره نا انصافي وشوه. د لودیانو په سلطنت کی دصدر جهان وظیفه په ډېلي کی یوه لوړه عهده وه. او د پاچا د پر تخت د کښېناستو مراسم دده په وېنا به پېل کېدل. پاچا به په مهمو فېصلو له ده مشوره کوله. خو د صدرالدین ددی رول او د هغه د ډېلي د ژوند په اړه هیڅ نه دي لیکل شوي.

## گورو او نواب

په ۱۴۲۹ میلادی کال د راوی سیند سره نږدی په یو وړوکی کلی تلونډی کی د هندوانو د کهشتری زات د یو دکاندارسېوا رام کره یو ماشوم وزېږېدوچی مور پلار ورله نانک نوم غوره کړو. سېوا رام شته من نه و خو د کلی خلکو بې درناوې کوو.دلته د بهټي قام خلک د لودیانو پر وخت مسلمانان شوی وو. په کلی کی هندوانو او مسلمانانو په گډه ژوند کووخو کله کله مذهبی شخړی به پېدا کېدی. هندوانو به مسلمانانو ته د ښکېلاک گرو په سترگه کتل. نانک چی د وو کالو شو نو پلار د کلی په ښونځی کی داخل کړوخو ماشوم د الف په توری ښوونکی سره بحث پېل کړواو د خدائ د وحدانیېت خبره یې وکړه. د سېوارام په گاونډ کی د یو مولوی سېد حسېن کور وو. هغه چی د نانک خبری واورېدی نو پوه شو چی دی ولی وو. هغه ته یې د اسلامی ازدکړی پېل کړی. نانک به زیات تره په نږدی ځنگل کی ځان ورک کړو. د نهو کالو په عمر کی مور پلار ورته د هندوانو د تار اغوستودودیزه مېلمستیا جوړه کړه. خو نانک د تاراغوستل رد کړل. دی چی د پینځلسو کالو شو نو پلاریي فکر وکړو چی د دکاندارئ ته یې را ووهڅوئ. یوه ورځ یې ورله پېسی ورکړی او د خپل ملازم

بالا سره یو ځای ور واستوو چی مالگه دی واخلی او په نږدی کلو بانډو کی دی خرڅ کړی. منډئ ته په لاره دوئ د ملنگانو د یوی ډلی سره مخ شول چی د ولوږې د لاڅه یې خبری نشوی کولی. نانک د ټولو پېسو ډوډئ واخیسته او ملنگان یې پری ماړه کړل. بیا یې ورسره مذهبی بحث وکړو. پلار یې خبر شو نو دده د وهلو لپاره یې لستوڼی راښکل. خو د کلی مشر رام بولارچی د نانک د دروېشئ نه خبر وو له خپله جیبه ورله تاوان پورا کړو.

بهلول لودي په ۱۴۸۸ عیسوي کال کې د ۳۸ کالو او اتو میاشتو حکومت نه وروسته مړ شو. دده زوی نظام خان د سکندر لودي په نوم چې د ډېلي پر تخت کېناست نو پښتانه د پنجاب نه ور اخوا د هند ختیځ او مرکزي برخو کې خپاره شول. یو لوی شمېر پښتنوته د مالوی، بندېل کهنډ او نورو ته په بهار او بنگال کی مزکی ورکړی شوی. د پینځلسمې پېړۍ په وروستیئو کې سکندر لودي د دوآب شاوخوا د کوکر(کهو کهر) قبیلې د بغاوت ختمولو لپاره دوه سرداران یوسف خان او نهاند خان ور واستول. دوی د ستلج سیند په غاړه په یوه وړوکي کلي کې خپل پوځې لښکر تم کړ. . نهاند خان د سیند په ختیځه غاړه پاتې شو ،دلته د محمد غوري پر وخت یو وړوکی کلي اباد و چې په کې د هغه وخت یو جومات هم جوړ و.نهاند خان د دغه جومات چار چاپېره د یوه نوي ښار د ابادولوکار پیل کړ او دا یې لودیان ونوموو چې وروسته بیا لودیانه شو. د پنجاب په ځینو تاریخونو کې د نهاند نوم "نهنگ" لېکل شوی چې گواکې دی دومره ظالم سړی و چې له خلکو نه یې په ژوندوني څرمنه وېستله او له همدې امله ورته نهنگ وایي.

د سیندپه لوېدیځه غاړه د سلطان پور لودی ښار اباد دی او په ځینو تاریخونوکی راغلی دی چی یوسف خان د ستلج نه پورې غاړې یعنې لویدیځ غاړې ته ولاړ او هلته یې د سلطان پور لودي په نوم د یو ښار بنسټ کېښود خو د سلطان پور لودی نومی ښار زکر د بولسمی پېړئ راهیسی شوی دی.. دا ښار

په لرغونی زمانه کی د سرومان پوراو په کوشانی سلطنت کی د یو لوئ بودهائ مرکز په توگه پېژندل کېدو. د سلطان محمود غزنوی په حمله کی دا ښار ویجاړ شو او بیا د دولسمی پېړئ په سر کی سلطان خان لودی چی د غزنوی دوری یو جنرال و، دلته یو نوی ښار اباد کړو. دا ښار د ډېلي او د پېښور تر مېنځ د تجارتی قافلو د لاری په سر وو نو ډېر ژر دپارلس کلومیټر پراخه شو. د ښار په مېنځ کی یوه ویاله بهېده چی کالی بین به یې ورته ویېل. په ښار کی د مساپرو لپاره سرایونه او په برابره فاصله حفاظتی مینارونه جوړ وو. یو وخت دلته ۳۲ بازارونه او د پینځو سوو نه زیات دکانونه وو. په څوارلسمې پېړئ کی دا د لوېدیځ پنجاب مرکزاوپه پینځلسمی پېړئ کی د لودی حکومت والی دولت خان به له دی ځایه دپنجاب پراخه سیمه اداره کوله. ښاي لاهور هغه وخت هم یو وړوکی ښاریه وه. د نانک پلار خپله لور د سلطان پور د یو تن جې رام ته واده کړی وه. ده د دولت خان لودي سره کار کوو. د ځوم په صلاح نانک ته یې په سلطان پور کی یووړوکی هټئ واخیسته. خو نانک د دکان هرڅه وېریا خلکو ته ورکول. په نتیجه کی دکان بی له څه گټی تش شو. جې رام خپل بادار ته د نانک په اړه وویېل. دولت خان ده ته د سرکاری مودي خانې (خېرات خانی) مشری وروسپارله او داسی ښایې چی نانک په دی کار خوشاله وو. لږه موده وروسته پلار ورله واده وکړو او دده دوه ځامن ووزېږېدل. دولت خان لودي د نانک د درویشئ نه خبر وو او هڅه یې وکړه چی دی رسمی ځان مسلمان اعلان کړی. ځکه ده د اسلام په پیغمبر حضرت محمد صلی اله علیه وسلم هم ایمان لرلواو هغه یې ریښتونی نبي گڼلو. خو نانک د مذهبونو د مراسمولکه لمونځ او نورو عباداتوسره ځان نه تړلو. ده د سرکاری خېرات خانې نه دومره ډېر شییان په خلکو وېشل چی د نورو چارواکوکینه یې راپاروله او هغوئ دولت خان لودي ته دده شکایت ووکړو. دولت خان د مودی خانی د سامان اود حساب جاج واخیستونو هر څه

ورته سم ښکاره شول. نانک ته یې درناوی ووکړو او نور اختیارات یې هم ورله ورکړل. خو سازشیانو څه موده وروسته بیا په نانک تور ولګوو چی سرکاری مال خپلوانو ته ورکوئ. د دولت خان په امر پلټنې ووشوې خو هر څه سم وو. له دی وروسته که څه هم دولت خان په نانک ټینګار ووکړو چی ورسره دی پاته شی، نانک دا نوکری پرېښوده. ده یو واری بیا د ملنګانو جامی په غاړه کړی او له کوره ووتلو. اوس له ده سره دوه نور کسان هم مله وو. یو مسلمان چی رباب به یې غږوو او مردان نومېدو ، بل هندو چی رام داس یې نوم وو خو خلکو به ورته بدها ویېل. نانک به په پنجابي ژبه کی صوفیانه شعر وویېلو نو مردان به ورله په رباب سر برابر کړواو زمزمه به یې کړو. دری واړه لومړی په پنجاب کی وګرځېدل، ورپسی کابل ته ولاړل. بیا د ایران د لاری ترکی او مکی معظمی پوری ورسېدل. د هغه ځای یوه پېښه داسی ده ، چی یوه ورځ نانک ویده وو اوکعبه ته یې پښی وی. د مکی قاضی رکن الدین وولیدو نو تری پوښتنه وکړه چی ولی یې د خدای د کور سپکاوې وکړو. نانک ورته وویېل که کولی شی نو زما پښی هغه لور ته تاو کړه چی خدای پکی نه وی. په واپسئ د افغانستان د شمال په خلم کی د نانک مسلمان ملګری مردان مړ شو. خو نانک د هغه مړی وسوځوو. بېرته پنجاب ته راوګرځېدو او اوس د مردان ځوئ سجاد ورسره شو. دا ځلی دوی ملتان او ورپسې کندهار ته ولاړل. په دی سفرونو کی د نانک نوم ووتلو او لوئ شمېر هندوان دده منونکی شول.

په ۱۵۱۷ کې سکندر لودي له نړۍ سترګې پټې کړی نو د پښتنود سلطنت زوال هم پیل شو. په ډېلي کې ابراهیم لودي د لیونتوب نښې ځرګندولې او په هر چا یې شک کاو. خپل ډېر تکړه سرداران یې د همدې شک له امله یا ووژل او یا یې بندیان کړل، نور چې د ده با اعتماده امیران وهغوي یې تېښتې ته مجبوره کړل. آن تر دې چې خپل سکه ورور جلال خان یې لومړی بندي او بیا

يې وواژه. د نانک د منونکوشمېره مخ په زياتېدو شوه نوابراهيم لودي، دی خپل دربار ته را ووبللو. نانک هلته پاچا ته هم دروېشانه خبری وکړی خو پاچا ورله د بندسزا وټاکله. پښتانه اوس په ابراهيم نه راټولېدل. دا وخت د پنجاب والي دولت خان لودي مغل پاچا بابر ته پيغام استولی و چې که پر ډهلي يې حمله وکړه نو دی به يې ملګرتيا وکړي
د کابل نه مغل پاچا ظهيرالدين بابرخپلې لښکرې د اباسين نه پورې د دوآبې شاوخوا را ټولې کړې. او په ۱۵۲۲ ميلادي کال کې ابراهيم لودي په پاني پت په جنګ کی ماته وخوړه، هم هلته ووژل شواوهند د مغلو لاس ته ورغلو. نانک وو مياشتی په بند کی وواودبابرپاچا له خوا ورخوشی کړی شو. د نانک منونکی وای چی بابر د نانک سره وليدل او ده ته يې د شرابو د څښلو بلنه ورکړه خو نانک ورته ووييل چی د خداې د معرفت مستو ملنګانو ته د دنيا نشې نه وی پکاری. د بابر په ليکلی ياداشتونو کی د نانک زکر نه دی راغلی. د مغلو په دوره کی نانک چی اوس خلکو ورته بابا نانک او ګورو نانک وييل، د هند نورو سيمو ته ولاړواو لوئ شمېرخلک دده پېرويان شول. دی د خپل ژوند وروستي څو کاله د راوی سيند په غاړه يو کورکی وسېدو اوهم دلته د بی وزلو خلکو لپاره يې يو ځای جوړکړو چی هره ورځ په زرګونو خلکو به پکی ډوډئ خوړه. د ډېره بابا نانک په نوم دا ځاې اوس هم په لاهور کی شته. د سيند په غاړه ده د کرتار پور نومی يو ښار هم اباد کړوچې وروسته په سېلابی اوبو لاهو شو. نانک په ۱۵۳۸ کی د ۷۱ کالو په عمر کی له فانی نړئ سترګی پټی کړی. د نانک په مړينی د هندوانو او مسلمانانو تر مېنځ شخړه را پورته شوه. دوئ د هغه وروستي مراسم د خپلی عقيدی پراساس سر ته رسولی. دده مړی د يو څادر لاندی ايښی وو او کله چی څادر لری کړی شو نو هلته مړی نه وو. اخر څادر دوه ټوټی کړی شو. مسلمانانو دا څادر خښ کړو او هندوانو خپله برخه وسوځوو. نانک د ژوندپه وروستېو ورځو کې خپل بو

مرید خپل ځای ناستې ګورو وټاکلو چې لهنا نومېدواو وروسته د ګورو انګدپه نوم یې د نانک تعلیمات خپرول. دنانک یو ځوئ لکهمی چند دنیا داره شو او اولادونه یې اوس هم شته. دوېم ځوئ سری چند د پلار په شان ملنګ شو، ده د وېښتو نه پرېکول، د توری چلول او د ځان د دفاع لپاره جنګی دود رواج کړو. په راتلونکو سلو کالو کی پنجاب د ګورو نانک د منونکو ټاټوبی شوچی سیک په نوم دی نوی مذهب پکی وده وکړه.

د ۱۵۲۲م د پانی پت په لومړی جنګ کی ځرګنده نه ده چې د مالېر پښتانه شیخ حسن او شیخ عیسی د چا پلویان وو. شیخ عیسی په ۱۴۹۳ کې سون پت د راي صوبه خان لور را واده کړې وه او مشر زوی یې خان محمد شاه نومیدو، د شیخ حسن مشر زوی سلیمان نومېدو. دواړو توربورانو په یوه وخت کې ملګرتیا هم لرله او تربګني یې هم پاله. د مغلود واکمنئ سره شیخ حسن چې لا تراوسه یې د پلار په بی انصافئ د مالېرله مشری لاس په سر نه و، دا موقع مناسبه وګڼله او د مغلو لخوا ټاکل شوي استازي (شاهي ګماشته) ته یې د خپل حق غوښتلو لپاره دعوه وړاندې کړه. په مالېر کې د شیخ صدرالدین د وصیېت د ټکي بدلول نا ممکنه خبره وه او شیخ عیسی د خپل ورور په دعوه دومره په قهرشو چې د ډېلي یو قاضي ته یې مخه کړه، هلته فیصله وشوه چې د وصیېت ټکي نه شي بدلېدی.

شیخ عیسی په ۱۵۳۸ م کې د شپېتو کلونو په عمر کې مړ شو او ځلور ځلوېښت کلن محمد شاه د پلار په ګدۍ کېناست، په دې وخت کې د ده لقب رئیس وو. که څه هم د مالېر ډېرې ځمکې د خان محمد شاه په لاس کې وې خو د ډېلي له لورې ورباندې یو چارواکې (مېرفېصلی) ټاکل شوی و چی د مالیې او نورو اداري کارونو څارنه به یې کوله. د شېخ حسن ځامنو میرزا خان اوسلېمان د خپل تربور نه د بدل اخېستو لپاره یوسازش وکړو او مېر فېصلي یې وواژه. د مغل د یو چارواکي وژل قانوني جرم و او د ډېلي له لورې ددی

جرم سخته سزا وه. په دی کار نه یوازې دا چې د مېرزا خان او سلیمان ټولې ځمکې ضبطې شوی بلکې د صدرالدین ټولو خپلوانو ته هم له مالېرنه د وتلو امر وشو.

خان محمد شاه دټول ټبر سره یوځای د خپل نیکه دسون پت رای صوبې خان (چې دده د مورپلاروو) سره واړاوه خو ډېر ژر د هندوستان د سیاست یول بل لوبغاړې مېدان ته شو. د بنګال او بهار واکمن شېرشاه سوري د بابر پاچا زوی همایون ته چې د خپل پلاربابر له مړینې وروسته د ډېلي پر تخت ناست و، په یو جنګ کی ماتې ورکړه او د هند پاچاهی یو واری بیا د پښتنو لاس ته ورغله.

همایون د ایران له پاچا طهماسپ سره پناه واخېسته. خان محمد شاه د شېرشاه سوري لخوا ټاکل شوی د سرهند والي ته خپل خواست یوړ او په ۱۵۴۳ عیسوي کال کی د نذرانې د پیسې ورکولو نه وروسته او د شاهي پوځ د منصب په اخیستود مالیر رئیس وټاکل شو. په دی کار د نواب او د منجاور کورنئ سره ووېشل شوی. مېرزا خان او سلیمان هم د خپل نېکه ځمکو ته بېرته ور وګرځېدل خو اوس د سرهند والي د دوئ په ځمکومالیه اخېسته. ښائ هم له دی وخته دوئ د مزکه والو یا خانانو په توګه وپېژندل شول. محمد شاه د لودیانو، مغلو اودسوریانو دورې ولېدې او په دې سیمه کې دپرله پسې جګړو شاهد و. نوموړی د مالېر د رئیس په توګه د پاچا او د مرکزی حکومت سره اړیکی ټینګی کړی. دی په ۱۵۴۵ عیسوي کال کې ومړ او درې زامن محمد اسحق، شاه منصور او عبدالله یې پرېښودل. محمد اسحق د خپل غورنېکه په څېر یو مذهبي کس و. ده د خواجه معدود (مودود) په لقب شهرت لرلواو کله چې ده د خپل پلار پټکې په سرکړو نوهغه مهال د شېرشاه سوري زوی اسلام شاه حکومت کاوه.

د پنجاب وړې وړې سیمې اوس د سرهند له لورې اداره کېدې اود دې مشر د چکله دار په نوم د ډيلي له لورې ټاکل کېدو. خواجه مودود د خپل پلار ځمکې په برابر ډول په خپلو ورونو وویشلې چې په نتیجه کی یې د دوئ په کورنۍ کې بی اتفاقي او جګړې رامنځ ته کړې. د ده دوو ورونو شاه منصور او عبدالله د سرهند له والي سره نیغ په نیغه اړیکې ټېنګې کړې چې په دې کارد یوبل پر ضد د سازشونو لړئ پیل شوه.

د سوري سلطنت په ډیوه کې تیل په خلاصیدو شول او په **۱۵۵۵**عیسوي کال کې د بابر پاچا زوی همایون یو وارې بیا د ایران نه لاهور ته را ورسېد، د شېرشاه لمسی سکندر سوري د سرهند سره نژدې د هغه مقابلې ته را ووت خو په جنګ کې یې ماتې وخوړه. په دغه جنګ کې خواجه مودود بی طرفه پاتې شو، همایون بری وموند او یو وارې بیا د هند واکمني د مغلو لاس ته ورغله خوهمایون په **۱۵۵۲** میلادی کال د شېر شاه له خوا جوړ شوی د ډېلي په پرانا قلا کی د شېرمنډل نومې ودانۍ له پوړیو په را پریوتو مړ شو نودده دولس کلن ځوئ جلال الدین د خپل پلار د پتمنو امیرانو په مرسته د دلي پر تخت کښېناستو.

خواجه مودود په **۱۵۲۲** عیسوي کال کې له فاني دینا سترګې پټې کړې او د ده د دوو زامنو فتح محمد خان او عبدالرزاق خان نه یې مشر زوی د مالېر رئیس و ټاکل شو. د فتح محمد خان د ورور عبدالرزاق دا هېله وه چې څرنګه د ده پلار خپلو ورونو ته په ځمکو کې برابرې برخې ورکړې وې، د ده وروربه هم داسې وکړې خو فتح محمد د نوي مغل واکمن اکبر پاچا د پېر د انتظامي چارو نه ښه ګټه اخېستل غوښته. فتح محمد خان خپلې ډېرې شاړې ځمکې کرنېزې کړې او د مالیې په چارو کې به یې د سرهند د چکله دار مرسته کوله.

په **۱۵۵۲** کی ګورو انګد مړ شو او دده بو مرید امر داس د ګورو په توګه وټاکل شو. تر هغه وخته هم د نانک پېرویانو د هندوانو ډېر رواجونه نه وو

پرېښي چې هو پکې د ستې رسم وو. امر داس د سيکانو لپاره ددې ممانعت ووکړو. خو ددې رواج د ختمولو اصلي عامل مغل پاچا اکبر گڼل کېږي. امر داس په ۱۵۷۴ کې مړ شو نودده ځوم رام داس يې پر ځاى گورو شو او له دې وخته دا منصب موروثي شو. رام داس د اکبر پاچا په بلنه د ربار ته ورغلو او لکه چې د پاچا عادت وو د بېلا بېلو عقائدو د منونکو سره به يې مباحثې کولې، رام داس هم د نانک لاره ورته روښانه کړه. دا د اکبر پاچا سرپرستي وه چې رام داس په ختيځ پنجاب کې د سيکانو د لومړي ښار امرتسر د جوړولو کار پېل کړو. د نانک منونکو د پورا مذهبي جذبې سره ددې ښار په جوړولو کې مادي مرستې وکړې. او سيکان د لومړي ځل لپاره د هو قام او د قوت په توگه د هندوستان په تاريخ کې ووپېژندل شول. د رام داس ځوئ ارجن په ۱۵۸۲ کې گورو وټاکل شو او ده په امرتسر کې د اوبو تالاب او معبد جوړ کړو چې اوس د طلائ معبد په نوم يې پېژنو. د شپاړسمې پېړۍ وروستي کلونه په هند کې د شورشونو شاهد وو.اکبر لا ژوندې وو خو په مغل کورنۍ کې د اکبر د ځوئ سليم او د لمسي خسرو تر مېنځ د پاچاه کېدوسيالي پېل شوې وه. د خسرو مور او خسرگنۍ راجپوت هندوان وو او دوئ د پوځ لوېه برخه اداره کوله.

په مالېر کوټله کې فتح محمد د يوښه واکمن په توگه را وځلېد ، او د سرکاري لقب له ورکړې پرته به خلکو نواب فتح محمد خان باله. د ده مېرمنه د جهال نومې کلي يوه راجپوته وه، دلته له تېرو دوو سوو کلونو راهيسې افغانان مېشت وو او ډېرو په کې د مالېر له افغانانو سره خپلولي لرله. خو فتح محمد خان د پنځوسوکلونو په سن کې هم اولاد نه لرلواو اخرد کورنۍ په غوښتنه يې د پنجاب د روپړنومې کلي د بوې افغاني کورنۍ جينۍ را واده کړه چې خپلوان يې د مغل حکومت په لوړو عهدو( دندو) مقرر و.

په ۱۵۹۳ م کې د ده په کور کې یو ماشوم وزیږېد چې بازید خان ونومول شو، په دې وخت کې فتح محمد ۵۳ کلن و. دوه کاله وروسته دده بل زوی بهاول خان وزیږېد وخو فتح محمد خان د خپلو زامنو ځواني و نه لیده او په ۱۲۰۰ م کې یې له نړۍ سترګې پټې کړې.

## مالیر او کوټله

نن د فتح محمد خان ځلوبښتې ده، ټول خپلوان په مالېر کې راسره را ټول دي. د فاتحې او دوعا نه وروسته یو سپین ږیری پاسېږي، اووه کلن بازید خان ته د خپل پلار د مشرئ پټکې په سروئ او په هغه ګدۍ یې کښېنوي چې د مالېر د مشر لپاره ځانګړې شوې ده. د یوې پردې تر شا د بازید مور دا هرڅه ویني، څو ورځې وړاندې د هغې په کاله یو برهمن راغلی او د بازید په اړه یې وېلي و چې دی به لکه د لمر په اسمان وځلېږي. د دواړو ورونو( بازید او بهاول) د زده کړو لپاره ښوونکي وټاکل شول، د هغی پېر له دود سره سم دوئ د توري وهلو، د اس د سپرلئ، غشې او نېزو ویشتل ازده کړل. له وړوکي عمر نه یې مورورته د انتظام، د خلکو سره د چلن او ناستې ولاړې ته پام کاوو.
په ډېلي کې ۱۲۰۵ کی د اکبر پاچا د مرګ نه وروسته د هغه زوی سلیم د جهانګېرپه نوم پرتخت ناست کښېناستو او دده ځوئ خسرو پروېز پنجاب ته ووتښتېدو. د پاچاهئ په هیله ده خپل تیت و پرک ځواک راټولوو. ده د سیکانو ګورو ارجن سره هم ووليدل او هغه ته یئ خواست ووکړو چی دده د برېالیتوب لپاره ورته دوعا ووکړی. داسی ښایئ چی ګورو ارجن د خسرو سره د پوځی مرستی ژمنه هم کړی وی. چی نتیجه یې دده لپاره ښه نه وه. د مغل پاچا جهانګیر د خزانی وزیر چانډو شاه نومېدو او ارجن د خپل سپاسی اغېز د زیاتولو لپاره د خپل ځوئ هرګووند د واده لپاره د هغه لورغوښته. وزیر نه

ہواځی دا چی د ارجن خواست یې رد کړو بلکه د هغه سپکاوی ېئ هم وکړو.
وروسته چاندو شاه خپله فیصله واړوله او ارجن ته یې ښه سوغاتونه ور
واستول. خو ارجن داهر څه ددی ځواب سره بېرته ولیږل چی اوس که د ټولی
دنیا شته منی هم ورله ورکړی نو دی د هغه لور نه غواړی. وزیر په دی
سپکاوي په قهر شو او د بدل اخیستو لپاره یې جهانګیر پاچا ته لمسون پیل
کړو. پاچا د خپل نافرمانه ځوئ هرملاتړی ته سزا ورکول غوښته. چاندو شاه
ته یې اجازه ورکړه چی ارجن ته دی پخپله سزا ورکړی. ګورو ارجن په لاهور
کی وونیول شو او په بندی خانه کی شکنجه او هم هلته د مرګي د مرض د لاسه
مړ شو.
د ارجن ورور پرتهی مل غوښتل چی د خپل وراره هر ګووپند پرځای دی پخپله
د سیکانو مشر شی خود قام وګړویې مخه وونیوله. ګورو ګووپند د پلار د
بدل او د وولس لپاره د وسلی را ټولول او د هر سیک لپاره جنګی تربیه لازمه
ووګڼله او ورو ورو د امن او د صلح پر ځاې ددی مذهب منونکی سیکان د اور
پکو او د جنګیالو په توګه یو ځواک شول. دی پخپله د جهانګیر پاچا په پوځ
کی د یو عسکری سردار په توګه ورګډ شو او یو وخت د خپل پلار قاتل چاندو
شاه ګوتو ته ورغلو نو په پینه کی یې ورته پړی واچوو او د ښار په لارو کی یې
په راښکلو راښکلو ووژلو.
د یوو پښتو کالو په عمرکی بازید خان د یو پوخ سیاست وال او پوځي په توګه
د مالیر د مشر دنده په غاړه واخېسته. له ریئس کېدو سره سم هغه د شیخ
صدرالدین کورنۍ پر ځان را ټوله کړه. خپلو تربورانو او شاوخوا کلیو کې
مېشتو پښتنو ته یې بلنه ورکړه چې تربګنۍ دې شاته کړي او د مالېر په
جوړولو کې دی ورسره لاس یو کړي. ده په لومړي ځل د مالېر لپاره یو پیاوړی
پوځ جوړ کړ او د پوځیانو په روزنه کې یې خپله هم ونډه اخېسته. د سرهند د
چکله دار سره یې د ځمکو او د پرګنو د مالیې چارې دومره قوي کړي چې هغه

به د ده مشورې منلی. خوپه کورنۍ کی دننه د تربور ولۍ او د وړو وړو شخړو
د هوارولو کار دده مخه نیوله چی په مالېر کی د پر مختګ څه کار ووکړی.
په ۱۶۲۸ میلادی کال کی جهانګیرپاچا مړ شونو دده ځوئ خرم د شاه جهان
په نوم د ډېلي پر تخت کښېناستو. هغه خپل مشر ځوئ دارا شکوه د پنجاب
والی وټاکلوچی په لاهورکی ووسېدو. داراشکوه پخپله یو متقی کس وو او
د دروېشانو سره به کېناستو پاسېدو. ګروهرګووېند دده نږدی ملګری و.
سیکان د یو پوځی قوت په توګه د مغل سلطنت لپاره د خطر بوه الامه وه او
شاه جهان غوښتل چی ددوئ زور مات کړی. هغه د مخلص خان په مشرئ وو
زره پوځ پنجاب ته ور واستو او د امرتسر سره نږدی په لومړی ځل سیکان او
مسلمانان د جنګ لپاره یو بل ته مخامخ شول. مسلمانانو سخت جنګ وکړو
خو ماته یې وخوړه. د داراشکوه په مېنځګړتوب روغه وشوه او هر ګووېند د
بل جنګ د مخ نیوی په هوډ د خپلو جنګیالو سره د ستلج سیند نه پینځلس
میله لری دجنوب په ځنګلونو کی ژوند پېل کړو. څه موده وروسته د
هرګووېند یو ملګري د شاهی طوېلی نه دوه اسونه غلا کړل او د پاچا قهر یې
راو پارو. مغلو بیا پنجاب ته لښکروراواستو او بیا یې ماته وخوړه. سیکان په
دی بریالیتوب ډاډه شول، د ځنګله نه راوتل او په کرتار پور کی مېشت شول
خو دوئ د یو لوئ جنګ لپاره څه موده ځانونه غلی وونیول.
د هرګووېند یو پښتون ملګری پېنده ( پاېنده ) خان نومېدو چی ده ورته ورور
ویېل. د هر ګووېند د ځوئ سره یو باز وو چی پېنده خان ته یې ورکړی و. بوه
ورځ دا باز والوتو او ورک شو. د ګورو او د پېندا خان تر مېنځ خبری ورانی
شوی او د ګورو په کېږدئ کی ولاړو ځینو سیکانو پېندا خان ووهلو. پېندا
خان د بدل اخیستو په موخه د شاه جهان دربار ته ورغلوچی سمدلاسه یې ورله
پوځ ورکړو او د سیکانو سره یې د دربم جنګ لپاره ور واستو. د جنګ په
مېدان کی څو ورځی توری برېښېدی او دواړه غاړی په مېړانه وجنګېدې. اخر

هرگوویند او پېندا خان ېو په ېو د جنگ مېدان ته ورودانگل. پېنده خان د هر گوویند په توره ووژل شو. مغل پوځ د خپل سردار په وژنې جنګ ووباېللواو د هر گوویند د مېړانی کیسی هری خوا خپری شوی. مغلو ډېره هڅه وکړه چی دی ژوندی وونیسی خو بریالي نشول. په ۱۲۴۵ کی دی مړ شو او د ده د وصیېت سره سم دده لمسې هر رائ گورو شو. هررائ د خپل نیکه په پرتله امن غوښتونکی و.

په مالېر کې چې کله بازید خان خپل خپلوان ځان ته را نژدې کړل نو ډېر د ده په کور اوسېدل، د صدر الدین ټبر اوس ډېر شوی وو. او د اوسېدو کورونه پرې تنگ شول آن تر دې چې په ۱۲۵۳ م کې د بازیدکشر ورور بهاول خان د خپل تربور سلطان خان لخوا د کور په سر ووژل شو، بازید خان د یوې لویې قلا د جوړولو لپاره د ډیلي چارواکو ته درخواستونه کول او ټولوخپلوانو ته یې ډاد ورکو چی دی به ډېر ژریوه پخه قلا جوړوئ خو د ورځو د تېرېدو سره د هغه مشکلات زیاتېدل. مغل حکومت د هند ټوله خاوره د پاچا ملکیېت گڼله او هر چا به چې د یوه پوخ کور ودانی، او کلا د جوړولو هوډ وکړ نو حکومت نه به یې اجازه اخېسته، پایله یې دا وه چې ولسي خلکو پاخه کورونه نه شوای جوړولي او خامو کورونو کې به اوسېدل. یوه ورځ د بازید خان یو تربورهغه ته دا پیغور ورکړ چې ترڅو ستا قلا جوړېږي موږ به مړه یو. د بازید لپاره دا پیغور یوه ننگونه وه، ده د سرهند د چکله دار نه یو لیک واخیست، په روپړ کې د خپل ماماخېلو په سفارش د ډېلي دربار ته ورغلو چې د پاچاامر واخلي.

شاه جهان پاچا اوس ناروغه و او دده د دوو ځامنو دارا شکوه او اورنگزېب تر مېنځ د تخت لپاره مبارزه پېل شوی وه. په دې وخت کې اورنگزېب خپل پلار او خورجهان ارا د اگرې په کلا کې نظر بند کړي و او د خپل مشر ورور دارا شکوه پسې لاهور ته روان و چې د تخت وارث شي. دارا شکوه د هر رائ

مرسته تر لاسه کړه خو داورنگ زېب ځواکونو دارا شکوه ووژلو اود هغه سر یې ورته راوړو.

. مغل پاچا به په دوبي کې کشمیر ته تلو او په لاره کې به د پنجاب راجاگانو د ده امنیت نېولو ، د مالېرد پوځ یوه ډله به هم د انبالې نه د شاهي لښکر سره مله وه او دا به یې د ستلج ترسینده بدرگه کاوه. په لاره به د شاهي کورنئ غړو ښکار کو. بازید خان په ځوانۍ کې څو واری د شهزاده اورنگزیب سره د ښکار پر وخت ملگرتیا کوله. د پنجاب دغه سیمې په ځنگلونو پټې وې او په کې هر ډول وحشي ځناور پیدا کېدل. یو حل اورنگزیب دلته پړاوو اچولی و چي یو زمری شاهي خېمې ته نژدې ورغی. بازید خان سم د لاسه پخپلی توری دا زمری وواژه. افسانه ویونکي واي، د ده همدغه کار د اورنگزیب خوښ شوی وي چې په مالېر کې ورته د یوې کلا د جوړولو امر ورکړ. خو په اصل کی بازید د دارا شکوه سره په جنگ کې د اورنگزیب ملا تړ کړی و او کله چی اورنگزېب لاهور ته په لاره د امبالې، سر هند ، لودیانی او روپړنه تېرېدو نو د مالېر ځواک هم ورسره د لاری ملتیا کوله. او بیا د ستلج سیند نه پورې وتلو کی یې ورته لاره ښودله.

اورنگزیب په خپل مرام کې بریالی شونو په ډېلي کې پر شاهی تخت د کښېناستو په موقع یو لوی دربار جوړ کړ، بازید خان ته یې د سیف الملک او د اسدالله د القابو او نواب د خطاب سره د قادر اباد او نوان گاون پرگنۍ د جاگیر په توگه ورکړې او په همدې موقع هغه ته د یوې کوټلې او د ښار د جوړولو اختیار ورکړل شو. اورنگزېب د سیکانو گوروهر رائ هم ډېلي ته راوبللو ، خو هغه خپل مشر ځوئ رام رائ ته یو لیک ورکړوچی پکی د خپل ځان په اړه یئ لیکلی و چی دی یو ملنگ سړی دی او د خپلی جونگړی نه به پاچا ته دوعا کوئ. اورنگزېب په دی لیک ارامه شو خو د ضمانت لپاره یې رام رائ په خپل دربار کی ووساتلو او ښه چلند یې ورسره کوو.

په مالېر کی بازید خان په ۱۲۵۷ میلادي کال کې د مې په میاشت د محرم په لومړۍ نېټه د ښار اساسی تېږې د ایښودو ورځ و ټاکله. د دې لپاره یې دوه شخصېتونه را وبلل چې یو یې صوفي بزرگ عالم شاه فاضل چشتي او دویم یې د هندوانو یو بېراگي سادهو مهاتما شام دهمودهرو. ده شاه فاضل ته خواست وکړ چې په دغه نوي ښار کې د خلکو د مېشتېدو دوعا وکړي، شاه فاضل د اوبو یو ډک منگی را وغوښتو. وایي چې بازید خان دا کار په خپلو لاسونو وکړ، له کوهي نه یې اوبه را وویستې منگی یې ډک او شاه فاضل ته یې ورکړو. شاه فاضل د قران څو ایاتونه تلاوت کړل او بیا یې ورته وویل چې دا اوبه د سیمې ټولو کوهیانو کې لړې لړې واچوه او ورته یې وویل هر هغه څوک چې کوټلې ته راځي همدلته به مېشت پاتې کېږي. په سر کې د بازید خان د کلاد بنیاد تېږه کېښودل شوه، د دې کار لپاره هغه د تېرو دوو کلونو راهېسې مواد را ټولوو. دا ښایي چې بازید خان د ښار نقشه له وړاندی لرله. ځکه په یو کال کې د ده کوراو بل کال ته د مالېرکوټله د کلا جوړول پوراشو. ښار په څلورو برخو وېشل شوی و چی د بازید خان د څلورو ځامنوپه نومونو یادېدل، فېروز، حسېن، سروراو اختیار. د ښار د قلا دیوال درې مېله اوږد و، مستطېل شکل اوځای ځای یې دڅارنې برجونه لرل. په دی کی اووه دروازی وی چی لاهوری، کابلي، ملتاني، سرهندی، سونمي، ډېلیاوکشمیری نومېدی. دې سره مالېر کوټله د یو مکمل ښار بڼه خپله کړله او د لومړي ځل لپاره د دې اوسېدونکو په پخو کورونو کی ژوند پېل کړو.

د سیکانو گورو هر رائ په ۱۲۲۱ کی د مړینی پر وخت خپل کشر ځوئ هری کشن د گورو په توگه وټاکلو چی ماشوم و. په دی فېصله په مغل دربار کی رام رائ سخت په قهر شو. دی او هری کشن د بېلو بېلو مېندو ځامن و. هری کشن اورنگزېب ته خپله دعوی وړاندی کړه او پاچا امر وکړو چی هری کشن دی د هغه دربار کی حاضر کړی شي. اورنگزېب د هری کشن په لیدو د هغه د پوهی

او هوښيارئ نه متاثره شو. او اعلان يې وکړو چی هم دی به د سيکانو گورو وی خو ماشوم هری کشن د چيچک په مرض اخته شو او د ژوند هيله يې ختمه شوه. دده منونکو تری د راتلونکی گورو په اړه وپوښتل نو ده د خپل تره تېغ بهادر نوم واخيستو. د هرگووبند دا ځوئ د پلار د مړينې پروخت ماشوم و او د هغه د وروستئ مېرمنی اولاد و. هم له دی وخته سيکان په دوو ډلو ووېشل شول.

بازيد خان له مغلو پرته په گاونډ کې د راجپوت او سيکانو سره هم ښې اړيکې وساتلې. په نابېه، جيند او بټاله کې هغه مهال د پهول سنگه کورنۍ واکمنه وه چې وروسته بيا د پهولکيان سرکار په نوم يې شهرت پېدا کړ. د گومتي را جه سردار چېن سنگ و چې ښه انتظامي صلاحيت يې لاره. د بازيد خان په وينا د سر هند چکله دار له هغه سره سلا مشورې پېل کړې، د بازيد خان په سفارش د مغلو لپاره به د پنجاب د دې ځنگلونو حاصلات او محصول پهول سنگ را ټولول چې خپله برخه به يې هم په کې اخېسته. له دې کار سره د چېن سنگ په زړه کې کينه او حسادت پېدا شو. يو کال سخته وچکالي وه او پهول سنگ له خپلو ځمکو ډېره گټه ونه کړه چې په پايله کې د ماليې ډېرې پېسې ورپورې شوی. چېن سنگ همداسې موقعې په لټه کې و، د سرهند چکله دار چې ماليه ترلاسه کوله هغه ته يې وويل پهول سنگ ته د ماليې پېسود ادا کولو موده (مهلت) مه غزوه، که ډېلې دربانډی بد گومانه شوه نو ممکن دا عهده درنه واخلي. په دې خبرې چکله دار د پهول سنگ د نيولو او په بند کې د اچولو امر وکړ.

بازيد خان چې خبر شو نو د خپل ملگري د راخوشې کولو لپاره سملاسي سرهند ته ولاړ، له هغه ځايه يې د ده لپاره پروانه ترلاسه کړه خو په لاره کې خبرشو چې پهول سنگ په بندي خانه کې مړشو. بازيد خان د ده مړی واخېست، پټيالې ته يې يوړاو د هغه خپلوانو ته يې د وروستي مراسمو لپاره

وسپاره. په ځينو تاريخونو کې راغلي چې پهول سنگ د مرگي په مرض اخته و او د بې هوشۍ چپه به ورباندې راتله، دی روغ و خو د مړي گمان پرې شوی او په اصل کې ژوندی و. انگريز تاريخ لیکونکی گريفن په دې نظر دی چې پهول سنگ د هندوستان د سادهوانو نه هغه هنرزده کړی و چې سړی تر ډېرې مودې ساه بندولی شي او خلک پرې گمان کوي چې دی مړ دی. هغه د بندي خانې نه د تېښتې دغه لاره پیدا کړې وه.

د نواب بازيد خان دوه مېرمنې وې، لومړۍ يې د بهمنانو له کلي نه وه چې په پنجاب کې دی او په ځينو تاريخونو کې د بهمن په نوم داسې اندازه شوې ده چې هغه بهمن شهزادگۍ وه (بهمني سلطنت په گجرات او احمدنگر کې جوړو) او دوېمه مېرمنه يې د کپور تهله اوسېدونکې وه. د بازيد خان پنځه زامن و چې مشر فېروز خان په ۱۷۵۹ کې د پلار د مړينې وروسته نواب شو.

تېغ بهادرخپل ټول ژوند د بهار په ايالت کی په سختيوتېرکړی و. خود سيکانو د مذهبي مشرپه توگه اوس ده سره يو زر سپاره عسکرو او په کرتار پورکی يې د خپلو مريدانو په پېسو يوه لويه کلا جوړه کړې وه. ده به په کلا کی دربار لگوو. اخوا اورنگزېب پاچا په هند کی د توری په زورد اسلام خپرولو ته بډی وهلی وی، امريې وکړو چی تېغ بهادر دی د خپلی کورنۍ سره وونيول شی اودده دربار ته يې حاضر کړی. په ۱۶۷۵ کی دی لومړی سرهند ته او بيا دهغه ځايه د اوسپنې په پنجره کی بند ډېلي ته ورسول شو. هلته دی د جې پور د راجه په کور کی ايسار کړی شو. راجه دده د ضمانت هڅه وکړه خو پاچا تېغ بهادر ته د اسلام په دين کی د داخلېدو ووېل. د ده په انکار جلاد د پاچا په امر دده سر پرېکړو. دده ځوئ گوبند نومېدواو تېغ بهادرد خپلې گرفتارئ پر وخت هغه د گورو په توگه نومولې و. وروسته ده د بهارپه پټنې کی ژوند پېل کړواو د هندو مذهب د لويو پنډتانو نه يې ديني ازدکړی وکړی.

د بهار صوبه د اورنگزيب د ورور شجاع په لاس کې وه، خو هغه د دې د انتظام

نه عاجز و او ډېر ژرپه کې د مرهټو مشر شیواجې سر را پورته کړو چې له څو کالو راهیسې د مغلو پر ضد په چریکي جنګ بوخت و. اورنګزېب به ددی جنګونو لپاره لوئ شمېر پوځ وراستولوچی د مالېر کوټله ځوانان به هم پکی شامل و

نواب فېروز د پلار په شان مالېر کوټله ښه اداره کړه، خو ځلور کاله وروسته مړ شو او د ده مشر زوی شېرمحمد خان په ۱۶۷۲ م کې د مالېر کوټله نوابي ترلاسه کړه. دی د خپل نیکه بازید خان تر سیوري لاندې لوی شوی واو په اوولس کلنۍ کی یې نه یوازې دا چې په پوځي مهماتو کې ګډون کوو بلکه د مغل پاچا اورنګزیب د ښکار لپاره تابیا هم کوله چې پکی په زرګونو کسان، اسونه، هاتیان او سامان د یو ځای نه بل ته وړل کېده.

د شېر محمد نوابي د مالېر کوټلې لپاره یو ډېر مهم پړاو و. د اورنګزیب په مخالفت د هند په ډېرو برخو کې بغاوت روان و، د مرهټو سربېره سیکان هم د هغه د سختې مذهبي تګلاري پر ضد را پاڅېدلي و. نواب شېر محمد خان د مرهټو سره جنګ لپاره د مغلو لخوا بهارته ولاړوچی ددی ایالت لویه برخه یې نیولې وه. په دی وخت کی د مالېر کوټله چارې دده ورور خضرخان په مخ بېولی. شېرمحمد د یوه غښتلي پوځ مشري کوله او د بهارد بیا نیولولپاره یې دومره مېړانه وکړه چې اورنګزېب ورله په پنجاب کی اویا کلي په جاګیر کې ورکړی. په دې وخت کې د بازید خان دوو نورو زامنو حسېن خان او اختېار خان هم ځان ځان له پوځي ډلې او په خپلو سیمو کې پخې قلاګانې جوړې کړې وې اود مغل پوځ په ملاتړ جنګېدل.

د بهار د کمپاین نه په راستنېدو شېر محمد د خپل نوي جاګیرپه انتظام لاس پورې کړ،او د جبوال په کلي کې یې یوه پخه کلا جوړه کړه. دا ځای د شېر پور په نوم مشهورشو او اوس د پټیالې په ضلع کې شامل دی، دلته ځینې پخوانۍ قلاګانې اوس هم شته. د شېر پور د ابادولو نه وروسته نواب شېر

محمد خان نورکسان وروزل او خپله جنګي ډله يې لا پياوړې کړه. دی یو واری بيا ډېلۍ ته را وبلل شو خودا وارد هغه خدمتونه د پښتنو د يو باغي سردار پر ضد په کارو.

د بدايون په ولسوالۍ کې د روهيله پښتنو يو مشرعلي محمد خان مغل واکمن ته د ماليې ورکولونه ډډه وکړه اود بغاوت بېرغ په پورته کولو ډېر ځواک يې موندلي و. دوئ سره د جنګ لپاره نواب شېر محمد خان د مغل پوځ مشري کوله او په دوو جنګونو کې روهيله پښتنو ته يې ماتې ورکړه ، علي محمد خان د خپلو يو شمېر پوځيانو سره لاس تړلی ډېلي ته راوستل شو. شېر محمد خان د دې بريالیتوب په بدل کې د پنجاب نهه مهم ځايونه چې پکی لوديانه، روپړ، ماچې واړه، پائل او بابيان شامل و، د جاګير په توګه ترلاسه کړل. ددی سربېره د اورنګزېب له خوا يوه توره ، يو اس د شېر بهادرد خطاب سره يې ترلاسه کړل او د سرهند د نايب چکله دار دنده هم ورته وسپارل شوه.

د بدايون زياتره پوځيان چې بندي نيول شوي و هندوان و، د پاچا په امردوی شېر محمد ته وسپارل شول چې مالير کوټلې ته يې را وستل، دوی يې مسلمانان کړل او ځمکې يې ورته ورکړې. وروسته چې کله شېرمحمد د مالېر کوټلې لپاره سرکاري پوځ جوړو نو زياتره همدغه خلک په کې شامل و، دوی ته به يې د شېر محمد چېله ويل. اورنګ زېب د غلام لپاره د چېلا ټکيي د کارولو امر کړی و. د چېليانو کوڅه په مالېر کوټلې کی اوس هم شته.

د هند په لر او بر کی جنګونه روان واو مغل خزانه په تشېدو وه. په ۱۲۷۲ م کې اورنګزيب د جنګ لپاره د پېسود پوره کولو په تکل شو، هغه د هند د نامسلمه خلکولپاره د جزيه ورکولوقانون جوړکړوخو په دې کارهغه د هند په ګوټ ګوټ کې د خلکو قهر او غصه را وپاروله او څه لږ ډېر خلک چې ورسره و هغه هم ترې خپه شول.

په دکن کې د مرهټه شیواجي په مشرۍ لا پخوا څو وارې بغاوت شوی وځو اوس په پنجاب کې سیکانو د ګوروګوبند په مشرۍ د بغاوت اور بل شو.
د جزیې نه پرته اورنګزیب د پلو محصول هم وټاکلو چې تجارت او سوداګرۍ ته یې یو لوی ګوزارورکړ. له یوې صوبې نه چې بل ته تجارتي مالونه لیږدول کېدل، سوداګر به مجبوره و چې په هغې مالیه ورکړي، په دی کار سیمئیزو زوره ورو ځمکه والو، پخپل سرمالیه اخیسته، سوداګرو به د خپلې ګټې نه زیاتې پیسې په مالیواو محصول ورکولې، هغوی چې مالیي به یې نه ورکولې مالونه به یې ځمکه والوضبط کړل. په داسې وخت کې زیاتره کاروبار د هندوانو او سیکانو په لاس کې واو په دی کارتر ټولو زیات تاوان دوئ ته ورسېدو. اورنګزیب د خپل ژوند پنځه ویشت کاله په دکن کې له مرهټو سره په جنګ جګړې کې تیر کړل او پاتې ژوند یې د سیکانو په سرکوبۍ پسې را واخیسته. د سیکانو روحاني مشر ګوروګوبند سنګ چې د خپل چریکي جنګ له لپارې په پنجاب کې د لوټ تالان، چورچپاول او د وېرې اچولو لپاره متې را نغښتې وی، د عامو سیکانو یو لوی پوځ جوړ کړی و چې مغلو ته به یې ځانی تاوان رسوو.
د سر هند چکله دارد ده سره د جنګ لپاره د عسکرو دوه لوې ډلې انند پورته ورواستولی چې ګوروګوبند په کې خپل سنګر نیولې وخومغل پوځ ماتې وخوړه. اورنګزیب د دې خبر په اورېدو په قهر شو د لاهور والي او د جالندهر او د سرهند چکله دار ته یې امر وکړ چې خپل خپل پوځ ته حرکت ورکړي او د سیکانو د ماتولو لپاره دې خپل ټول وسایل په کار واچوي، ده د ګوروګوبند د ژوندي نیولو امر وکړ. دا جګړه تر اتو کلونو روانه وه او څومره چې مغل د سیکانو په ماتولو کې پاتې راتلل اورنګزیب ورته همااغه هومره ټکنې کیدو آن تر دې چې اورنګزیب خپل زوی مراد د لسو زرو عسکرو سره پنجاب ته ور ولېږلو. د سرهند او د جالندهر چکله دارو یو وارې بیا خپل پوځ ور برابر کړ،

د دې ټول ځواک شمېر څلوېښت زره و. شهزاده مراد لاهور ته ولاړ او په ۱۷۰۲ کال کې په انندپور یوه بشپړه حمله پیل شوه. په دې کې د نواب شېرمحمد خان پنځه زره سپاره او پلي عسکرهم شامل و چې مشري یې دده ورور خضر خان اوتربور ناهر خان کوله. د دې ځواک مشرانو په ګډه دا مشوره وکړه چې دوی به انندپور د هرې خوا نه کلابند کړي چې د بهر نه د رسېدو ټولې لارې ورته وتړي.

په دې اوږدې محاصرې د ګورګوبند ملاتړې د ولږې او تندې له لاسه ورو ورود سیمې نه په وتلو شواو په اخره کې د ګورو ګوبند سره یوڅو پټمن ملګري پاتې شول. دوی نه غوښتل چې ژوندي د دښمن لاس ته ورشي ځکه چې د اورنګزیب پاچا نه یې د ښه سلوک توقع نه لرله.

ځینو سیک مورخینو لیکلي چې په دی بد حال کې هم ګورګوبند د تېښتې لاره نه خپلوله خو خپلو ملګرو ورته وویل چې که ژوندی پاتې شوی نو له بله ځایه به خپله مبارزه جاري وساتو. یو بل ځای لیکلي دی چې کله د ده نه پنځه ویشت زره د مجهیل ډلې سیکان بیل شول نو ګوروګوبند په انندپور کې خپل ځان خوندي نه ګڼلو، هغه خپل دوه زامن چې یو یې زوره ور سنګ او بل فتح سنګ نومېدو د شپې د قلا نه له خپلې مور سره یوځای وویستل او دوی په یوه وړوکي کلي کهېړې کې د یوه برهمن په کور کې پناه واخیسته چې ګنګا نومېدو. ګوروګوبند د خپلو څو ملګرو سره انندپور نه ووتلو او چمکور ته یې ځان ورساوه. په بل سحر چې مغل پوځ خبر شو نو په شاوخوا کلیو کې یې ورپسې لټون پیل کړ، لټون کوونکي د مالېر کوټله اود سرهند پوځیان و، دوی د چمکور کلا د دننه حال نه، نه و خبر چې څومره کسان په کې دي، اود یوې لوې حملې فیًصله یې وکړه.

د شېر محمد خان ورور ناهر خان د ځینو پوځیانو سره د کلا دیوال ته اندرپایه (پارسنګ) ولګوله او په خپله ورباندې وخوت. کله چې بره ورسید نو

وربانديږ چا د يو کاڼي ګوزاروکړ، دی په سر ولګيد او د لرګېنې اندرپايي نه لانديږ را ولويد، له دي سره يو ځای د ده په سينه او تندي کې يو شمېرغشي ښخ شول او د بې هوشۍ په حال کې له هغه ځايه وويستل شو.
د ده تربور خضر خان د جګړې قومانده پخپل لاس کی واخيسته او دی هم ووژل شو. نواب شېر محمد خان د خپلو دوو ورونو او تکړه قوماندانانو په وژنې سخت خواشينی شو. ګوروګوبند په هغه شپه د چمکور د کلا نه هم وتښتېد او د مچهي واړې په کلا کې يې مورچه ونيوله. بل خوا د هغه مورله خپلو دوو تنکيو لمسو سره د ګنګا برهمن په کور کې وه، دوی په اسونوورغلي واو د هراس له زين سره ځوړندې خلتې د روپو او د سرو زرو ډکې وې. ګنګا دغه هر څه تربنه غلا کړل او فکر يې وکړچې که دوی مغل واکمن ته وسپاري نو ډېر انعام به ترلاسه کړي، هم په هغه شپه يې چارواکوته د دوئ حال ورکړ.
مغل پوځ ډېر ژر دغه درې واړه ونيول او د سرهند چکله دار ته يې حاضر کړل چې وزير خان نومېدو او د کنج پوری پښتون و. هغه په ماشومانو زور راوړ چې که مسلمانان شي، نو دوی به وژغورل شي او پاتې ژوند به په ارامه تېرکړي. دوی ته د انند پور ټول جاګير د ورکولو ژمنه وشوه او داچې دوی ته به لوي انعام او القاب ورکړل شي، خو هلکانو هېڅ وعدې ته غاړه نه ايښوده.
په دې موقع نواب شېر محمد خان د ماشومانو د راخوشی کولو هلی ځلی پېل کړی، وزېر خان ورته وويل څو ورځې وړاندې ستا دوه ميړني ورونه د دوی د پلار لخوا ووژل شول او اوس ستا واردی چې خپل بدل واخلې، خو نواب شېر محمد خان په ځواب کې وويل زما ورونه د جنګ په تود ميدان کې شهيدان شول او زه به د خپلو ورونو بدل يوازې د جنګ په ميدان کې اخلم خو په هېڅ حال د دوو بی ګناه ماشومانو وينی نشم تويولی، دا مېړانه نه ده چې خپل لاسونه دی د دوو ماشومانو په وينو سره کړم. د پلار د کړنو بدل د هغه له

ماشومانو نه اخیستل غلط کار دی، اصلي مېړانه د لاس تړلو بندیانو وژل نه، بلکه له دوی سره رحم کول دي. بیا یې وویل که د دوی پلار هم لاس تړلی د یو بندي په توګه د ده مخې ته را وستل شي نو دی به د هغه نه هم بدل نه اخلي.

نواب شېرمحمد خان په ببړه مغل واکمن اورنګزیب ته د احتجاج یو لیک ورواستاوه چې په کې د ماشومانو د ژوند د ژغورنې غوښتنه شوې وه.

د دې لیک یوه برخه داسې وه " سره له دې چې هېڅوک هم د واکمن له امر نه سرغړونه نه شي کولی چې د مرګ په شان به یې مني خو د عالي حضرت د سلطنت وفاداره نوکران دا مناسب ګڼي چې د عالي جاه پام ورته واړوي.

داسې به وویل شي چې د ځېنو مهمو سیاسي فیصلو تر مخې او په تېره کې د سیکانو د نا مناسبه فعالیتونو په رڼا کې دې، دې قام ته هره سزا که ورکول کېږي هغه به سم کار وي. خو د عالي جناب یوو وړوکی او وفاداره ملازم داسې فکر کوي چې دا به په هیڅ ډول د سلطنت او د ستر قدرت د اصولو سره سمه خبره نه وي چې د ټول ملت غچ دې د دوو معصومو او بې ګناه ماشومانو نه واخیستل شي، چې د خپل کم عمرله کبله د باقدرته منصبدار په وړاندې هیڅ نه شي کولی. داسې قسمه عمل په ښکاره د اسلام او د اسلام د پیغمبر د اصولو خلاف دی. د عالي حضرت دا غلام وېره لري چې داسې یوه ناوړه عمل به د پاچا په انصاف او عدل یو تور داغ وي"

نواب شېرمحمد خان په خپل لیک کې له اورنګزیب دا غوښتنه هم وکړه چې دا دواړه ماشومان دې په ډېلي کې خپل دربار ته را وبلي چې ښه تربیه واخلي او د سلطنت او د پاچا وفاداره شي. که داسې نه کېږي نو دواړه ورونه دی هغه ته وسپارل شي چې په حرکاتویې نظر وساتي او بیا د حکومت خلاف پاڅون ونه شي کړی. په اخره کې یې دا هم ولیکل چې که پاچا د ده وړاندیز نه مني نو بیا هم دې( نواب شېر محمد خان) دا خپل فرض ګڼي چې رښتیا ووایي او له

ربښتیا ویلو نه دی ډډه ونه کړي. سیکان د شېر محمد دا کار" ها ده ناره" ( یعني د احتجاج غږ) په نوم یادوئ.

کله چې دواړه ماشومان د وزیر خان له لوري ووژل شول ( د سیکانو تاریخ وائ چې ژوندی یې په دیوال کی خښ کړل) نوگوروګوبند ترې خبر نه و او نه یې داسې اټکل کووچې له زامنو سره به یې داسې ظالمانه چلند وشي، نوموړی له مچهي واړې نه په پټه رای کوټ ته ولاړ اوهلته د ځامنو د قتل نه خبر شو. کوم کس چې ورته خبر راوړی و، له هغه یې پوښتنه وکړه چې داسې کوم کس نه و چې د دا ډول ظالمانه عمل مخنیوی یې کړي وای، هغه ته د نواب شیر محمد خان د هڅواو اورنگ زېب ته د هغه د احتجاجی لیک په اړه وویل شول. گورو گوبند هم هغه وخت دواړه لاسونه پورته کړل او هغه ته یې دعا وکړه چې" د هغه نوغی دې تل شین وي" سره یې دا هم وویل " اوس به مغل سلطنت زوال وکړی" دی یو څه موده په مکهو وال کی پټ و او یوه ورځ یې موقع پېدا کړه چې د چمکورکلا ته ولاړ شی ده سره اوس پینځه ملګری پاته اوڅو میله تللی و چې دوه پښتانه، نامی خان او غنی خان ورباندی پېښ شول چې گورو گوبند یې وپېژندلو. دوئ د پېسو په بدل کی گورو گوبند او دده ملګری بهلول پورته ورسول چې پکی د گورو یو ایرانی معلم قاضی پیرمحمد وسېد اودوئ ته یې په خپل کورکی پناه ورکړه. د گوروګوبند زوراوس مات شوی و او دی د څه مودې لپاره د پنجاب په غرنېو سېمو اوځنګلونو کې پټ وخو اورنګزیب اوس هم نا ارامه و او ټولو منصبدارانو ته یې امرکړی و چې د سیکانو په حرکاتو دې نظر وساتي.

د سیکانو له دې ماتې سره شېر محمد خان ته نورامتیازات ورکړل شول، د سرهند چکله دارد گوروګوبند په لټه یو بل لښکر د حملې لپاره تیار کړاو نواب شېرمحمد خان ته یې هم بلنه ورکړه خوهغه اوس د سیکانو په وړاندې له کوم ګام پورته کولو ډډه وکړه. دی د گوروګوبند د زامنو په وژنې له زړه نه خپه

شوی واو اوس له هغه سره جګړه ورته یوعبث کاربښکاریدو ، بله دا چی د هغه پوځ په ځنګلونو کې د چریکي حملو لپاره تیارنه واو دریمه دا چې د ګوروګوبند له لوري یې ځان ته دوعا یوه نېک نیتي وګڼله او نه یې غوښتل چې دا دوعا دې په ښیرا بدله شوې وای.

ګوروګوبند او د هغه ملګرو د بدل اخیستو قسم کړی واو په ۱۷۰۲ میلادي کال دوی د پنجاب د ټولو مسلمانانو په ضد د جنګ نغاره و ډنګوله. ډېر ژر د سیکانودولس زره لښکر تیار شو. په دې موقع دوی مالېر کوټله او رای کوټ دواړه خوندي سیمی اعلان کړی. د دی دوه علتونه و، یوه دا چې د نواب شېرمحمد خان چلند او د ګوروګوبند دوعا وه او بله دا چې د مالېر کوټله په ټولوکلیو او بانډو کې شل زره پوځ د جنګ لپاره تیار ولاړو او سیکانوددوئ د جنګ زور نه لاره. هغه مهال د نورو سیمو مسلمانانو په مالېرکوټله کې پناه اخیستې وه. د سیمو کمزوري واکمنود ځان ساتنې لپاره سیکانو ته پیسې ورکولې او یا به یې ځمکې او کلي دوی ته وسپارل.

د نواب شېرمحمد خان په اړه انګریز تاریخ لیکونکی سرلیپل ګریفن د چمکور د جنګ یوه پېښه بیانوي. په دې جنګ کې نواب یوه سیکه ښځه انوپ کور په زوره ونیوله ، هغه یې مسلمانه کړه او بیا یې ورسره واده وکړ. دې مېرمنې وروسته ځان ووژلواو په مالېر کوټله کی یې خاورو ته وسپارله. د سیکانو کوماندان بیدی صاحب سنګ څو کاله وروسته د دې مېرمنې د جسد د اخیستو لپاره د شېر محمد په کلا حمله وکړه، د دې مړی یې را وویست او د سوځونې لپاره یې یوړ.

د مالېر کوټله نواب افتخار خان د دې پېښې په اړه وایي چې د دوی د کورنۍ په تاریخ کې د دې مېرمنې هېڅ ذکر نه دی شوی او نه یې د چا له خولې اوریدلي دی نو کیدای شي چی سیکانو د حملي لپاره یوه پلمه غوښتله. خو د چمکور د جګړې په اړه د هند نامتو تاریخ لیکونکی ډاکټر ګنډا سنګ لیکي،

کله چې د گوروگوبند سنگ د نیولوهلې ځلی کېدی نو د ده یوه خدمتگاره بي بي انوپ کور د شیرمحمد خان لاس ته ورغله او هغه دا له ځانه سره یوړله خو دې میړنۍ سیک میرمنې خپل ژوند د خپل دین اوعزت لپاره قربان کړ.
شېرمحمد دا په خاموشۍ په قبر کې خښه کړله، بېدي سینگ د جنگ لپاره مالېر کوټله ته نه وورغلی او په ښار یې هېڅ غرض ونه کړ. د بي بي انوپ کور مړی یې له قبرنه را وویست او د سیکانو له مراسمو سره سم وسوځول شو.
د اورنگزېب ځوئ بهادر شاه چی د پنجاب حاکم و د گورو گوبند سره روغه وکړه. اورنگ زېب په دی وخت کې په دکن کې و او گوبند ته یې یو فرمان وروا ستو چی که دی ورته حاضر شو نو انصاف به ورسره ووشی. گورو گوبند د فرمان په تر لاسه کولو په فارسی ژبه د څوارلسو سوو قطعو یو نظم وولیکلو چی پکی د خپلو بد بختیېو او د حالاتو زکر کړې و. سیکان دی نظم ته ظفر نامه وایې . دا شعر یې د خپل ورور دیا سنگه په لاس دکن کی پاچا ته ور وولېږلو. پاچا د شعر په ویېلو نورهم متاثره شو او خپل استاځې یې گورو ته ددی ډاډ سره بیا ور واستوو چی که دی دربار ته حاضرشو نوښه چلند به ورسره ووشی. په ۱۷۰۷ کی گورو گوبند د پنجاب نه روان شو خو دی په لاره و چی د اورنگزېب د مړینې خبر یې واورېدو.
په دکن کی د اورنگزېب ځوئ بهادر شاه خپل ځان د هند واکمن اعلان کړی و. گوبند چی هلته ورسېدونو بهادر شاه ورته تود هر کلی سره د اسونو ، هاتېانو او قیمتی سوغاتونو سره د پینځو زرو عسکرو د ساتلو منصب ورکړو. په دکن کی یو پښتون جمشېد خان ورسره ملگری شو. ده یو ځل د گوروپه فرمائش ورله اسونه واخیستل خو گوبند د پېسو په ورکولو ځنډ وکړواود دواړو ترمېنځ خبری ورانی شوی اوتوری راویستل شوی، گورو پخپلی توری دجمشېد خان سرپرېکړو. د سیکانو ځینی سر چینی وائ چی جمشېد خان د گورو د وژلو لپاره د وزیر خان نه پېسی اخیستی وی او د هغه له خوا

وراستول شوی و. گوروگوبند په دی وژنه پښېمانه شواودجمشېد کورنئ ته
یې پېسی ورکړی خو د هغه ځامن د پلاربدل اخیستو ته د موقع په لټه و. یوه
ورځ دوئ د هغه خوب کوټی ته ورننوتل او د گوروگوبند په خېټه کی یې چړی
ووهلی. دده په چیغونور سیکان راټول شول، دواړه هلکان یې ونیول، د
گورو خېټه یې وگنډله، ملهم پټئ وشوه او دی له خطره ووتلو. گوبند د دواړو
ورونړود پرېښودو امر وکړو، په دی چی هغوئ د خپل پلار بدل اخیستی و.
دی د خپلو ټپونو د لاڅه ځوورځی وروسته په ۱۷۰۸کی مړ شواو بنده بهادر
یې خپل ځای ناستې ووټاکلو.
بنده بهادر په اصل کی یو هندو بېراگی و چی په دکن کی د گورو گوبند په
لاس بېئ سیک مذهب خپل کړی و. گورو گوبند د مرگ نه وړاندی ده ته
سپارختنه کړی وه چی د وزیر خان نه به دده د ځامنو بدل اخلی. بنده بهادر کله
چی پنجاب ته ورسېدونو په زرگونو سیکان دده بېرغ لاندی راټول شول. او د
شاو خوا د مسلمانانو په سیمو کی یې چور چپاول او وژنی پېل کړی. په
پنجاب کې دا کلونه د وړومسلمانوریاستونو لپاره ډېر سخت و. سېکانو د
سامانه او د سیهورا له لوټلو او ویجاړولو وروسته لویدیځ او ختیځ هرې خوا
ته تلل او څه چې به یې مخې ته راتلل یا به یې ورانول او یا به یې له ځانه سره
وړل. بهادر شاه څو وارې خپل پوځ پنجاب ته واستوو چې د سیکانو زورمات
کړي او دوی کامیابه هم شول خو شېرمحمد په دغو جنگونو کې عملاً برخه
وانه خیسته. کله چی سیکانو په سرهند د یولوئ حملې اعلان وکړونو
وزیرخان هم مسلمانانو ته د جهاد غږ وکړو او په ډېلی کی بهادرشاه نه یې د
مرستی غوښتنه وکړه. خو پاچا د سیکانو له خوا اوس د خطر احساس نه کوو.
او ښایي دی ډاډمن وچې د دوئ زور اوس اوبه شوی و. خو په سر هند چپاو
اوس د سیکانو لپاره یومذهبي فرض او د غچ اخیستو ناره گرځېدلې وه. د
پاچا اندازه غلطه وه او سیکانو د سرهند په قلا یو ناڅاپی یرغل وکړو، وزیر

خان يې ژوندی ونيولواو د ده انجام ډېر دردونکی و. دی يې د يو غوايي له پښو سره وتړلواوغوايي يې د سرهند په لارو کوڅو کې وزغلولو، وروسته دی يې مړژواندی په اورکې وسوځاوه. د مسلمانانو مړی يې له قبرونو راويستل ددوئ کورونه يې چورکړل ان تردی چی د ټول سرهند ښاريې له مينځه وړل غوښته خوبنده بهادرورته وويېل چی پخپله ښارڅه گناه نه وه کړی نودی ته تاوان مه رسوئ. که د چا زړه بدل اخېستل غواړی نوکله چی له دی ښاره تېرېږی نودوه خښتی دی اخلی او د ستلج په سيند کی دی اچوئ. د سرهند نه سيکانو ته په لوئ شمېر وسله او بارود په لاس ورغلل او ددی د تباهۍ نه وروسته د سيکانو قدرت نورهم زيات شو. مغلوتازه ځواک پنجاب ته وروا ستواو دوئ يو واري بيا سرهند ونيولو. نواب شېرمحمد خان يې د دې صوبه داروټاکه. په ۱۷۱۰ د مې په مياشت کی د چهپر چهيری نومی ځائ کی د حکومتی پوځ او د سيکانو تر مينځ سخت جنگ وونښتواو نواب شېرمحمد خان په دی جنگ کی خپل ژوند د لاسه ورکړو. له ده اته زامن پاتې شول چې مشر يې غلام حسېن ، نور يې جمال خان، مېرزاخان، عظيم خان، فتح خان، اکبرخان، غلام رسول او غلام علي خان و.

غلام حسېن د خپل پلار ځای ونيولوخوده د شيرمحمد په شان پوځي استعداد نه لاره او نه يې په دې بدو حالاتو کې څه سياسي اغېز لرلې شو. ده مالير کوټله په وړوبرخووويشله اويوه يوه خپل هروروړ ته يې وسپارله چې له سيکانو سره مقابله وکړي. دی په خپله يو سوله خوښونکی کس و او د صدرالدين د کورنۍ کومو خانانو چې سرهند ته ماليه نه ورکوله د هغوی سره به يې د سولې او روغی جوړې له لارې ستونزې هوارولې. د مالير کوټله په سوېل کې د ګڼوځنگلونو سيمه د غلام حسين د ورور جمال خان په لاس کې وه او له دغه ځايه به يې د سيکانو د بريدونو په وړاندې دفاع کوله چې اوس يې زورترلاهوره رسيدلی و. د مغلو لپاره لاهوريومهم انتظامي مرکزو. بهادرشاه

له یولوی لښکرسره د لاهور په لوری وخوځېد او د سیکانو سره د دوو مهمو جنګونو نه وروسته یې هغوي غرونو او ځنګلونو ته وشړل. د تېښتې پر وخت د سیکانو جنګي ډلې د مالیرکوټله شاوخوا هم راماتی شوی. همدغه خطرو چې د مخ نیوی لپاره یې غلام حسېن په هر کلي کې د دفاعي کلاګانو د جوړولو امروکړخو سیکانو هغه وخت مالیر کوټله ته زیات تاوان ونه رساوه. د نواب وروڼه د هغه له کمزورې پالیسۍ خوشحاله نه و، په تیره بیا جمال خان ، چې د دښمن سره یې کلک جنګ غوښتو. ده یو ځلې د خپل مشرورورغلام حسېن سره ناندرۍ ووهلې، له هغه مرور شو، د خپل لښکر سره له مالیر کوټله نه ووتو او شېر پور ته یې مخه کړه. دی تر شپږو میاشتو له وروره مرور په کلي کې پروت و. میرزا خان اوعظیم خان هم د غلام حسین نه په خپګان خپلو خپلو کلیو ته ولاړل، خو نواب د دوی د پخلاینې لپاره هېڅ و نه کړل.

په مالېر کوټله کې اوس د دفاع لپاره قوی پوځ نه و، ښځې، زاړه او بي تجربي ځوانان د خدای په اسره پاتې شول. په دې وخت کې مالیر کوټله د یو بل ګوانښ سره مخ شوه. د اورنګزیب پروخت د بدایون د بغاوت مشر روهیله سردارعلي محمد خان د نواب شېر محمد خان نه ماتې خوړلې او بندي شوی و، د ده زوی عثمان یارخان د پلاربدل اخیستو لپاره د دولسو زرو پوځیانو سره په ۱۷ اکتوبر ۱۷۱۳ کې په مالېرکوټله د حملی لپاره روان شو.

نواب غلام حسېن د دې جنګ زور نه لاره، دی یو سوله خوښوونکی کس ونود عثمان یار سره یې د سولې په تړون خپله لور بلاقن بېګم عثمان ته په نکاح کړه او جنګ ونه شوخو د روهیلو په تاریخ کې لیکلي چې عثمان یار په مالیر کوټله حمله وکړه ، جمال خان د ده مقابلې ته را ووتو اوعثمان یار یې سولې ته مجبورکړو. دا خبره یقیني ده چې د مالیر کوټله د نواب لور روهیله سردار ته ورکړل شوې وه او په دې خبره د غلام حسین وروڼه او په تېره بیا جمال خان ډېرپه قهرو.

اخواد ډيلي پر تخت کله د مغلو يوه شهزاده او کله بل کښيناستو. د شاهی مانۍ د سازشونو او د وژنو سلسله پراخه شوه او اخرفرخ سيئر پاچا شو.
د سيکانو د زورد ماتولو لپاره ده امر وکړ چې که هر چا يو سيک ژوندی ونيولو او د ډيلي دربارته يې راوړو نو هغه ته به انعام ورکول کيږي. د سرهند والي د ماليرکوټله د نواب غلام حسېن نه هم دا غوښتنه وکړه خو هغه دا کار غلط وګڼلو او په دې مخالفت د سرهند نه مغل لښکر په مالېرکوټله د حملی لپاره روان شو. جمال خان په دې وخت سخت جنګ ته تيار وخود غلام حسېن د روغې جوړې په پاليسئ دا جنګ و نه شو. دی ټولو حالاتو د غلام حسېن زړه د نوابۍ نه تور کړی و. يوه ورځ خپل ورونه يې را وبلل ، د ټولو په وړاندې يې د نواب پټکې د خپل وروړجمال خان په سر کېښود او په خپله يې ځان د نړۍ له کارونو ګوښه اعلان کړ. د هغه نورو ورونو هم په دې فېصله خپله خوښي ځرګنده کړه. په دې فېصله د نوابۍ حق د غلام حسېن د زامنو نه جمال خان ته انتقال شو. د غلام حسېن نيمګړتيا دا وه چې اداره يې نشوه چلولې او ښه والی يې دا و چې د جنګ پر ځای د صلح لاره يې غوره ګڼله خو د هغه وخت د پنجاب په حالاتو کی د ځان ساتنی لپاره دواړه د پياوړی پوځ او سياسی بصيرت پکار و. دی يو صوفي و او د جنګ پر ځای يې د سولې، امن او روغې پلوي کوله. دده لوي په دی کی وه چی کله يې ځان د نوابۍ وړونه ليدونوژريې فېصله وکړه اونه يواځې واک يې خپل ورور ته وسپارلوبلکه خپلې شخصي ځمکې چې هغه وخت يې د کال نوې زره روپۍ حاصل ورکاوه ورونو ته پرېښودی او ځان سره يې يوازې پنځه کلي ووساتل چې خپل خرڅ لپاره يې کافي ګڼلې.

## د ژوندو لاره

د ۱۷۱۷ میلادی کال هوا سړه شوې ده، د ښېر محمد خان دوېم ځوئ جمال خان د نواب په گدۍ ناست او د کلا په دې لويه کوټه کې د صدرالدين د ټبر مشران را ټول دي. مالېر کوټله ته د جمال خان راتگ په عامو خلکو کې د خوشحالۍ سوب شوی دی، ټولو د ده تود هرکلی وکړ،او په يوه پرانيستي دربار کې يې د عامو خلکو په شوراو زوږد نواب وظيفه ترلاسه کړه.

جمال خان په يوه احساساتي وينا کې په ځوانانو غږ کوي چې د سيکانو په مقابل کې د ډېلي له حکومت نه دې هيڅ تمه ونه لري.

هلته مغل په بېلابېلو ډلوويشل شوی ، د تخت په سريو بل ته سازشونه کوئ او دامونه غوړوئ. د افغانانو مشران بيا هم په جمال خان ټينگارکوي چې د سيکانو په مقابله کې د مسلمانانو د ژغورنې لپاره دی له پاچا يوغښتلی پوځ وغواړي. جمال خان دا خبره مني خو ټولوځمکه والو ته د اسونو د شمېرې د زياتولواوځوانانو ته د جنگي ترببې، تورې، غشې او نېزې د ا يشتلو د ازدکړی امرکوي. غلام حسېن له دنيا سترگې پټې کړي او د ډېلي پرتخت مغل واکمن محمد شاه ناست وچی د د عېش او عشرت ژوند خوښوو اوعامو خلکو ورته د "رنگيلا" لقب ورکړی و. ده د حکومت ټول کارونه يې خپل مشر وزير قمرالدين ته پريښي و.

سيکان اوس د پهول سنگ لمسي الا سنگ د بېرغ لاندې د دل خالصه په نوم را ټوليدل. ده د پنجاب د مالوې نومي کلي کې يوخپلواکه حکومت هم اعلان کړی واو له شاوخوا کليو نه د مسلمانانو له شړلوورو سته اوس مالېرکوټلې ته

سترگی خړی کړی وی. جمال خان د یو باتدبیره او مسلکي پوځي په څېر ټول حالات څارل، د خپل انتظام لاندې په ټولو کلیو کې دفاعي مورچې او کلاګانې او د هر کلي خلکو ته یې د منظم پوځ لپاره دندې ورو بښلې وې. د کلي مشر د خطر پرمهال په یوه ټاکلي شمېر کې پوځیان را ویستل او هغو کلیو ته به یې استول چې سیکانو پرې بریدونه کول. دغو پوځیانو ته به د خپلې وردی (رسمي جامې) او اس ساتنې لپاره د میاشتې دوه روپۍ ورکول کېدې. د کلي مشر د پوځیانود کورنۍ د خرڅ لپاره په وار د خلکو نه غنم او نور شیان اخېستل. د دې پوځي تاکتیک او جنګ ته اماده ډلو له امله شاوخوا سیکانو په مالېرکوټلې له برید او حملې ډډه کوله او دیارلس کاله د دې سیمې مسلمانان په امن کې و. د بنده بهادرد وژنې نه وروسته سیکان په یولسو برخو ووېشل شول او د هری ډلی مشری د جنګیالو قوماندانانو په غاړه شوه. په سر کی دا ډلی د جتهه په نوم یادېدی. ددی جنګیالو به په جنګونو کی لوټ شوی د غنیمت مال به مشر ته ورسپارلو. د هری ډلی مال به په دوسیه کی لیکل کېده او په دی به یې نوره وسله او د جنګ لګښت پورا کوو. دی دوسیې ته به یې مسل ویېل . او اخر دا نوم د ډلو لپاره به یې کاروو. د سیکانو د یولسو مسلونو نومونه داسی و. بهنګي، نشان والیه، شهید ، رام ګړهیه، نکئ، اهلوو الیه، کنهیا ، کرور سنګهیه، فېضل پوریه، دلوالیه، سوکهر چاریه، په دوئ کی تر ټولو قوی د جسه سنګه اهلوالیه مسل و چی د لوئ ځواک سره به یې په مسلمانانو حملی کولی. د هغه ملګری الا سنګه نومېدو.

په ۱۷۳۷ کې الا سنګ د افغانانو سیمې په رای کوټ د لوی شمېر سیکانو سره حمله وکړه. له ده سره زرګونه جټان مله و ، دې جټانو به په چېغو او نارو د هرې خوانه په یو کلي چپاووکړو ، په خلکو به یې وېره او ترهه ګډه کړه ، چور تالان به یې پېل کړ او ورپسې سیکانو ډلو به پوځي حمله وکړه. د رای کوټ

په دفاع کې د جمال خان دوه ورونه غلام رسول او غلام علي ووژل شول، رای کوټ هم ډېر شمېرځوانان له لاسه ورکړل. د جالندهر پوځدار اسدعلي خان له دې پېښې وروسته د مغلو دمنظم پوځ سره دالا سنګ پر ضد د جنګ اعلان وکړاو په برناله کې دواړه څواکونه یو بل سره ونښتل. سیکانو په پوره مذهبي جوش توري برېښولې او اخر بریالي شول. اسد علي په دغه جنګ کې ووژل شو او مغل واکمنو یو ځلی بیا په هند کې د مرهټو نه پرته د سیک ځواک نه د خطر احساس وکړ.

مغلو لا د سیکانو د مقابلې لپاره په خپلو کې سره صلاح مشورې کولې چې بل کال ته یعنې په ۱۷۳۸ کې د ایران نادر شاه افشارد یو لوي ځواک سره چې په کې د کندهار او شاوخوا سیمو افغانان شامل و، پنجاب کې لښکرې داخلې کړې. هلته د دوی د مقابلې لپاره د مغلو پوځ ډېر کمزوری واو په یو لنډ جنګ کی د مغلو دېرش زره پوځیان ووژل شول. نادر شاه ته د ډهلي دروازې پرانستل شوی. څو ورځې وروسته د اختر په ورځ د نادر افشاریوڅو پوځیان په یوه مېله کې د عامو خلکو له لوري سپک شول نو بلوا جوړه شوه. نادر شاه د دې د بد ل اخیستو لپاره د ډهلي د عامو خلکو د وژلو امروکړ چې په ترڅ کې یې د یو نیمو لکو نه زیات بې ګناه خلک ووژل شول. نادر شاه د جنګ د تاوان نه علاوه د روغې جوړې او سولې په پلمه د مغلو د خزانې نه په منونو سره زر، قیمتي ډبرې، ګاڼې او وربښمین ټوکر په اوښانو بار له ځانه سره یوړل. په دې خزانو کې تخت طاوس چې شاهجهان لپاره جوړ شوی واو کوه نور الماس هم شامل و.

مغل حکومت دسیکانود یو بل پاڅون د مخنیوي لپاره په ۱۷۴۲ کې روهیله نواب علي محمد خان د سر هند والي وټاکلو، ده د مالیې په را ټولولو کې سختې کوله او په دې پالیسۍ ځینې ځایي سرداران ترې ناراضه شول، د رای کوټ مشرهم د مالیې له ورکړې ډډه وکړه. د دې علت دا وچې د خطر

پرمهال مرکزي حکومت د دوی دفاع نه کوله. علي محمد جمال خان ته امر وکړ چې رای کوټ ته د سزا ورکولو لپاره د ده د لښکرو سره ملا وتړي، د جمال خان لپاره دا یوه ګرانه فېصله وه. رای کوټ کې د ده خپل ترېوران اوسېدل او ورته یې مشوره ورکړه چې دا وخت له مغلو سره جګړه عبث کار دی خو د رائې کوټ مشر دا خبره ونه منله، د مغل پوځ سره یې په جنګ کی د ماتې خوړلو وروسته د دیپال پورلوري ته وتښتېد او ورور یې قلا او ښار علی محمد ته تسلیم کړل. اخر د جمال خان او ځینو نورو راجاګانو په سفارش او د یو لک او دېرشو زرو روپو د نذرانې په ورکولوعلی محمد دی بېرته د رای کوټ د مشر په توګه وټاکلو.

اخوا په ایران کې د نادر شاه له وژنې وروسته احمد شاه ابدالی په ۱۷۴۷م کی د یو خپلواکه مشر په توګه د افغانستان پو مستقل مملکت اعلان کړی و. د لاهورمغل حاکم شاهنواز خان و چی په ډېلي کی د کمزوری حکومت نه ناهیلی افغانانو ته یې سترګی نیولی وی، احمد شاه ابدالی ته لیکونه وراستول چی که پنجاب ته راغی نو هر کلی به یې وکړی. احمد شاه په ۱۷۴۷ م د ډسمبر په میاشت کې له اتلسو زرو پوځیانو سره چې دریمه برخه یې سدوزي و د پېښور نه روان شو او په جهېلم کی د شېر شاه سوری جوړشوی د روهتاس په قلا کی ایسار شو. دلته خبرشو چی شاه نواز د خپلې خبری نه اوختی دی اواوس له ده سره جنګ کول غواړی. احمد شاه د حالاتو معلومولو لپاره خپل پیر صابر شاه لاهورته ورولېږلو چی هلته د شاه نوازله خوا ووژل شو. بل کال د جنوری په لسمه افغان ځواکونو په لاهورحمله وکړه او د دود ورځو په جنګ کی یې دا ښاروونیولو.

د ډېلي حکومت په دې خوځښت د سرهند صوبه دارعلي محمد خان خپل ټاټوبي انوله ته ولاړ. نواب افتخار پخپل تاریخ کی لیکی چی د ډېلي مغل حکومت دی له خپلې دندې ګوښه کړځکه ددی خبری وېره وه چې نوموړی به د

پښتونولۍ د احساس له امله د احمد شاه له پوځ سره یوځای نه شي . خو ګنډا سنګه وائ چې علي محمد خان ډېر هوښيار و. هغه پوه و چې افغانان دده مرستې ته اړتیا نه لري او احمد شاه ابدالی په هند کې د ایسارېدو پلان هم نه لرلو. نورو سردارانو احمد شاه ته په سر ټيټولو د مغلو سره ورانوله خو علی محمد مغلو ته دا ښودل چې دی د افغانانو سره ملتیا نه کوئ. ولی په اصل کې په دی کار يې سر هند بې ځواکه پرېښودو. مغل پاچا په پنجاب کې خپلو ټولو حاکمانو ته امروکړ چې په سرهند کې دې را ټول او د افغان لښکرمخه دې ونيسي. د محمد شاه وزير قمرالدين او مغل شهزاده احمد شاه د افغانانو سره د جنګ لپاره پنجاب ته لښکرې يوړې خو د مالېرکوټله جمال خان په دې وخت کې احمد شاه ابدالي سره اړيکې ټينګی کړی. افغان پوځ د لودیانی له لارې يې په یوه حمله د سرهند کلا ونیوله چې په کې د مغلو ډېرې وسلې او پوځي توکي ايښي و. د مارچ په ۱۱ نیټه د ۱۷۴۸ م انبالې ته نژدې د مانوپور(مان پور) نومي ځای کې د مغل او افغان پوځ ترمنځ سخت جنګ وشواو په دی کی وزیر اعظم قمرالدین د توپ په یوې ګولۍ ووژل شو. د هغه زوی معین الملک ( دمېرمنو په نوم شهرت لري) د پنجاب ټول مشران د احمد شاه د پوځ پر ضد جګړې ته را وبلل او یوه متحده ټلواله(جبهه) يې جوړه کړه خود مالېر کوټله جمال خان له پېل نه افغان ځواک سره مل و.

احمد شاه د سرهند له نیولووروسته په کندهارکې د خپل وراره اوځای ناستی لقمان له بغاوت نه خبرشونو دا سیمه يې خپل زوی تیمور شاه ته وسپارله، جمال خان يې د هغه نايب وټاکه او پخپله بېرته کندهار ته ولاړو. د لاهور واک يې معین الملک ته پرېښودوچې افغانانو ته د باج په بدل کی د مغلو له خوا يې لوېديځ پنجاب اداره کو. په ډېلي کې د مغل پاچا محمد شاه له مړينې وروسته د ده زوی احمد شاه په تخت کېناستو. د کابل پخواني مغل والي ناصرخان چی د ابدالی نه تښتېدلی و د هغو ځمکو د بيا نېولو ژمنه وکړه چې

دده له واکه وتلې وې. بل لوري ته هغه سيکانو چې د نادرشاهي حملو پرمهال يې زورکم شوی و او د افغانانو د حملې پر وخت غرونو ته تښتيدلي و اوس بيا ځانونه يوځای کول. همدا سوب و چې احمد شاه يو واري بيا د لښکرسره د پنجاب پر لوروخوځېد خو د لاهور سره نژدې د چناب سيند په غاړه د ډېلي د پاچا له لخوا ورته د سولې وړانديز وشو اود کال څوارلسو لکو روپو د باج په بدل کې روغه وشوه. افغان لښکر د ملتان، ډېره اسماعيل خان او ژوب له لارې بېرته کندهار ته ستون شو. د باج په ورکولو کی معين الملک(ميرمنو) سستی کوله او د کندهار نه به د احمد شاه استاځی لاهور ته ورتلل او لږې ډېری پېسی به يې را بوت کړی.

په ۱۷۵۱ م کې احمد شاه له کابل نه پېښور ته ورسېد ، معين الملک ته يې د باج ادا کولو لپاره لېک ورولېږه او د تېرو کلونو د پاته څليريشتو لکو روپيو غوښتنه ترې وکړه. په دی کال سيکانو د لاهور ښارونيولونو احمد شاه د لاهورپرلوري وروخوځېد اودوئ يې له ښاره وويستل . معين الملک بېرته لاهور ته د حاکم په حېث ولاړ نوافغان پاچا د هغه نه د باج غوښتنه وکړه، دده په انکار په ۱۷۵۲ م د مارچ په مياشت کې افغانانو د لاهورکلا محاصره کړه نو معين الملک خبرو ته راضي شواوپه پايله کې يې يوتړون ورسره وکړ. خو په راتلونکي کال معين الملک مړشو اود ده کونډې مغلاني بيګم په پنجاب کې د خپل ماشوم زوی د سرپرستې په توګه د مغلواوافغانانو ترمنځ د استازې رول ولوبوو. په ډېلي کې اوس د مغلودوېم عالمګيرپه تخت ناست و. په پنجاب کې د سيکانو پاڅون اوخوځښت بيا په زياتېدواومرهټود ډېلي د نيولو لپاره زورلګولی و.

مغل حکومت جمال خان ته د سيکانود ماتولوامر وکړوخو له دومره لږپوځ سره هغه ايله خپله سيمه ژغورلی شوه. په دې وخت کې مغلاني بيګم (چی ځوئ يې هم مړ شوی و) او روهېله پښتنوسردارنجيب الدوله احمد شاه ته بلنه

ورکړه چې له دوی سره مرسته وکړي. په سرهند کې افغان استازی او والي عبدالصمد خان مرهټو نیولی واو د پنجاب حالات د تېمور شاه له واکه په وتلو شول. مغل واکمنو خپلی ژمنې پورا نکړی نو تېمورپه سرهند کې نجیب الدوله خپل مختیارمقررکړاو په خپله کندهار ته ولاړ. د هند مسلمانان اوس له یوی خوا مرهټو او بلی خوا د سیکانو په منګولو کی واو د ډهلي کمزوری مغل واکمن د دوئ چاره نه لرله. په دی وخت کی د مسلمانانو یو مذهبی مشر شاه ولي الله افغانستان ته د مرستی غږ وکړو.

د ۱۷۵۲ م د جنوری په میاشت کې احمد شاه ابدالي د هند د مسلمانانو په مرسته چی پکی روهیله پښتانه په سر کی و، یو لوی ځواک سره د پاني پت په مېدان کې مرهټو ته ماتې ورکړه او په شمالي هند کې د دی ځواک ته د تل لپاره د پای ټکی کېښودل شو.

احمد شاه د دویم ځل لپاره مغل پاچاعالمګیر ثاني د ډهلي په تخت کښېناوه، د هغه لور زهرا بېګم یې خپل زوی شهزاده تېمور ته واده کړه او سرهند یې ورته په پسول (جهېز) کې ورکړو. دلته زېن خان د هغه لخوا والي و ټاکل شواو احمد شاه په خپله د پېښورپه لوري وخوځېد، خو لا اټک ته نه و رسېدلی چې سیکان له غرونواو ځنګلونو را ښکته شول او په جالندهراو لاهورکی یې جنګ پیل کړ. دوی سرهند محاصره کړو خو نواب جمال خان د ځاي کوماندانانو په مرسته دغه ځای وژغوره. اوس زېن خان او جمال خان دواړواحمد شاه ته لیکونه ورواستول چی د سیکانو چاره دی وکړی. په دې وخت کې د ابدالي له لوري په لاهور کې ټاکل شوی والي عبدالمجید سیکانو وواژه نو هغوی ته د سزا ورکولو لپاره احمد شاه له پېښوره را وګرځید.

سیکانو د خپلو ټولو ډلو ځواکونه یو کړل او د احمد شاه سره یې د مقابلې لپاره په جنډ باله کې مورچی ونېولی.

نواب جمال خان د احمد شاه لخوا پیغام اخېستی و چې د یو لوی جنګ لپاره دې پوځ تیاروساتي. د جمال خان مشر زوی بهیکن خان د دولسو زرو جنګیالیو سره چې په کې راجپوت هم شامل و ، د جنګ د نغارې د اورېدو په انتظار شول. نورولویواو وړو راجاګانوهم له یوې او بلې ډلې سره په ملاتړ خپل پوځیان را وویستل . د دغې پرېکندې جګړې لپاره دا مهال د پنجاب په میدانونو کې اتیا زره جنګیالي را ټول و. افغانانو په سیکانو یو ناڅاپه برید وکړاو دوی یې د ګاډیو له هغه کاروان نه بېل کړل چې وسلې او نور پوځي توکي په کې بار و. سیکان په شا شول او دهغه کلي چاپېره یې دفاعي جنګ پیل کړچې په کې د دوی ښځې او ماشومان راټول و.
کله چې سیکانو ولېدل چې نوردوی خپله دفاع نه شي کولی نو په خپل لاس یې خپل په سلګونو ښځې او ماشومان ووژل. د دوی غېرت دوی ته اجازه نه ورکوله چې ښځې او ماشومان یې مسلمانانوته پرېښې وای. دوئ په خپل پورا مذهبي جوش جنګ کاووا و د اندازې ترمخه شل زره سیکان په دې جنګ کې ووژل شول. د" شمشېرخالصه " کتاب لیکوال وایي په دغه جګړه کې د دېرشو زرو کسانو نه یوازې دوه سوه تنه ژوندي پاتې شول اود سیکانو سپیڅلي کتاب د "ادی ګرنت" تاریخي نسخه هم وسوځېده. په سیک تاریخ کې دا جنګ د "وډه غلوغره" (لوېه فاجعه) په نوم یادېږي
له دې جګړې وروسته احمد شاه ابدالي برنالې ته ولاړ اود سیکانوجنګیالو مشرالا سنګ یې ژوندی ونېو ، هغه احمد شاه ابدالي ته پنځه لکه روپۍ د نذرانې او یو لک او پنځه ویشت زره نورې روپۍ د خپلې رېرې او سر د وېښتو د ساتلو لپاره ورکړې،(په سیک مذهب کې د وجود وېښتو خریېل ګناه ګڼل کېږي) الا سنګ د خطاب سره په رسمي توګه د افغان مشر له خوا د پټیالې راجا اعلان شو. وروسته احمد شاه ابدالي سرهند ته ولاړاو په جنګ کې د مېړانې لپاره یې جمال خان او د ده زوی بهیکن خان ته سازا سونه،

قیمتي جواهرات او نور امتیازات ورکړل. په دې موقع هغه جمال خان ته د هند د رستم خطاب او د خپلې سیکې د جوړولو اجازه هم ورکړه چی د مالېر کوټله په تاریخ کی یو مهم پړاو و. په امرتسر کی افغان پوځ د سیکانو (طلایي) معبد ویجاړکړاو د دې په تالاب کې یې کاڼې او ګټې لوټې واچولې چې دا ډک کړي.

نواب جمال خان ته اوس یو بل خطرادینه بېګ وچی مغل حکومت نه باغی او د سیکانو سره یې لاس یوکړی و. ده په روپړ کلی کې ځان تیاروو چی ددی شاوخوا ځمکه د جمال خان سره وه. د ادینه بیګ په راپورته کېدو د ډېلي واکمن جمال خان ته ددوئ سره د مقابلې امر وکړو. جمال خان خپل پوځ روپړته یوړ.خو دوی ځان پیاوړی کړی او دا جنګ د جمال خان لپاره په ماته تمام شو. دی بېرته په زخمی حالت کی مالېر کوټلې ته ووړل کېدو چې د نامعلوم کس له لوري پرې ډزوشو اوګولۍ یې په سر ولګېده، د ده نژدې ملګرو د ده مړی مالېرکوټلې ته راوړ. دی د قوي ارادی خاوند و او دده په نوم یو وړوکی ښاریه د جمال پوری په نوم اوس هم شته.

د جمال خان دوه مېرمنې عنایت بیګم او سلطان بیګم او پنځه زامن و، بهیکن خان، بهادر خان، عبدالله خان، عمر خان،او عطاءالله خان. د جمال خان جاګیر په برابرډول د ده په زامنو ووېشل شو، خو د نوابۍ لپاره بهیکن خان په ګدۍ کیناستو. ده هم د خپل پلار په شان د ډېلي له واکمنو څه تمه او توقع نه لرله او احمد شاه ابدالي ته پټمن پاتې شو، هغه به یې د پنجاب له حالاتو وخت په وخت خبراوه. په دې ورځو کې د سرهند والي زېن خان انبالې ته پرلارد سیکانو له لورې ووژل شواو الا سنګ ځان د سرهند واکمن کړ. بهیکن خان په دې هیله چې احمد شاه ابدالی به ورسره مرسته وکړی په ۱۷۶۳ کې د الا سنګ مقابلې ته لښکر روان کړو. د ده جنګیالي د کالاجهرنومي کلي نه تېرېدل چې ورباندې حمله وشوه، بهیکن خان په ګولۍ ولګېد او د پلار په

شان د ده مړی هم مالېرکوټلې ته یوړل شو ، دا مهال د ده دوه زامن وزیرعلي خان او فتح علي خان ماشومان و.
مالېرکوټله په دې اړې ګړې کې یوقوي مشرته اړتیا لرله. خو د بهیکن خان کونډې نادره بېګم غوښتل چې ددې ماشوم ځوئ دی نواب او دا دی د هغه سرپرسته شی. نژدې وه چې په مالېرکوټله کې کورنۍ جنګ پیل شوی وای چې د بهیکن وروربهادرخان د نواب په ګدۍ کیناستو ، خپل وراره وزیرعلي خان یې غیرېږې کې واخېست او په یوه پرانستې جرګه کې یې لوړه وکړه چې کله وزیرعلي ځوان شو نو نوابي به ورته پرېږدي.
خو د بهادرخان نورو ورونو چې پخپله د ګدئ دعوی داران و خپلی وریندارې نارده بیګم ته لمسون کاوه چې د اولادونو حق یې خوړل کېږي، آن تر دې چې یوه ورځ هغې خپل زامن له ځانه سره کړل، مالېر کوټله یې پرېښوده او د جمال پورې کلا ته ولاړه. هغې له ځانه سره قیمتي ګاڼې او پېسې هم یوړې او د تلو نه وړاندې یې د ریاست هغه ملازمان له کاره وشړل چې نوابی کورنئ ته وفاداره و. دا خلک د روزګار په لټه نژدې واکدارانو ته ورغلل او نه یوازې د نوابي کورنۍ داخلي کمزورۍ یې خلکو ته افشا کړي بلکه دا چې پخوانیو نوابانو څه کول او په دې ریاست کې څوک څه څه لري.
له دې پېښې وروسته هغو سیکانو چې لوټ تالان یې کارو په رڼا ورځ د مالېر کوټلې په کلیواوباندوېرغلونه پیل کړل. د دې حملو د مخنیوي لپاره نواب بهادرخان احمد شاه ابدالي ته لیکونه وراستول. نواب په خپله د دې خبرې پلوي کوله چې افغانان دې په هندوستان بله حمله وکړي. په ۱۷۶۵ کې احمد شاه ابدالي یو وارې بیا پنجاب ته مخه کړه خو دا وارې یې د سولې او روغې جوړې لاره غوره کړه. د پټیالې د سردارالا سنګ سره یې دځلورولکوروپواود سرهند په بدل کی روغه وکړه او دا ژمنه یې تری واخیسته چې دی به هرکال

افغان واکدار ته درې لکه روپۍ باج ورکوي. ده ته يې د راجه لقب او د سيکې د جوړولو اختيارهم ورکړ.
په دې توګه احمد شاه د خلکو د وژلو نه ډډه وکړه. خو په دې کار د مالېر کوټلې وړه غوندې سيمه چې د هرې خوانه په دښمنانو کې را ګېره وه هيڅ ضمانت ور نه کړ، سره له دی چی الا سنګ، د رای کوټ مشراو نواب بهادر خان ترلاهوره د احمد شاه سره بدرګه ولاړل، داسی ښکاري چی د بهادرخان شخصيت داسې نه و چې د خپل نيکه جمال خان په شان افغانانو ته يې ځان نږدی کړی وای. دده ستونزه دا وه چې ډېرژر به قهريدو، احساساتی اومغروره هم و. په سياست نه پوهېدو او د مشر تابه خوئ بوئ يې نه و ازده.
د خپلوورونړونه به خپه او په سمه توګه به يې له هغوئ سره خبرې نه کولې، که چا به ورته په حکومتی کاريا سياست کی مشوره هم ورکړه نو ده به دغه کار يوه مداخله ګڼله او په پايله کې به خلکو تری ډډه کوله. خو د احمد شاه ابدالي له خوا د مالېر کوټله نواب ته پام نه کول يو بل سبب لاره.
کله چې احمد شاه ابدالي د سرهند پرګنه الا سنګ ته وسپارله نوبهادر خان مغل پاچا ته د احمد شاه ابدالي پر ضد لمسون وکړ. هغه د الا سنګ په اړه هم ډېلي ته منفی خبری رسولی، دا چې الا سنګ افغان پاچا ته لويه نذرانه ورکړې وه. دې د وخت په سياست نه پوهېدو او په کور کې د ننه هم ورسره مخالفتونه په زياتېدو شول. د شيخ صدرالدين د کورنۍ هر يو خان د نواب بهادرخان نه په يوه يا بله خبره خپه کېدو ځکه چې ده به ورته سپکاوی وکړ، يا سترې مشي به يې ورسره په ښه ډول ونه کړ. د الا سنګ له مړينې وروسته د ده زوی امرسنګ د پټيالی راجا شواو ډېر خانان د بهادر خان پر ضدد هغه سره مله شول. د شېر پوراجاره دارچی خليل چېله نومېدو، د نواب بهادر خان مقدم وو. راجا امرسنګ دی ځان ته را ولمسوو، خليل راجا ته نذرورکړاو راجا د شېر پور کلا د نيولو لپاره خپل پوليس ورواستو. د نابېه، جند، او د

مالوې سردارانو ، د پېسوپه بدل کی پښتنو ځمکه والودځان ته د را اړولو هڅې وکړی. په دی کاردمالېرکوټله دريمه برخه ځمکې او کلاګانې د راجا امر سنګ لاس ته کېوتې اوسيکانو بې له جنګ د دی لويه خاوره ځان ته کړه.
سيکان په دې باورو چې د مالېرکوټله نواب د دوی دښمن واوددوئ سردارانو په يو ځای پرېکړه وکړه چې مالېرکوټله دې د سيک هېواد يوه برخه شي دوئ په دی وبرېدل چې که افغانانوبيا په پنجاب حمله وکړه نومالېرکوټله به ورته سازش کوي.
نواب د دې خبرونو په را رسېدو سخت نا ارامه شواوخپلوورونو ته يې خواست وکړ چې د سيکانوپر ضد ده سره متحد شي. د ښار او د کلا ديوالونه جوړاووربانددی توپونه ودرول شول ، د جنګ نغاره و غړېده او ټولو خلکو خپل ځوانان د سيکانود حملی لپاره چمتو کړل. يوازې د پښتنو د کورنيو پنځه سوه ځوانان را وړاندی شول او په لږه موده کې دوه زره پوځ برابر شو.
دوی هوډ وکړ چې د مالېرکوټلی د ساتنی لپاره به سرونه ورکوئ او کله چی سيکانوحمله وکړه نو دوی تيار ناست و. د شاو خوا کلو نه هم ورسره نورمسلمانان مله شول او د حملی پروخت د مالېرکوټله دفاع لپاره
شپږ زره جنګيالی ودرېدل. پښتنو پريکړه وکړه چې له ديوالونو د توپونو د ګوزار پرځای لاس په لاس جګړه وکړي، دوئ له کلا بهرووتل او تر مازديګره جنګ روان و. هغه پښتانه چی د نواب نه خپه وترماځيګر ددوئ له خوا هم کومک را ورسېد او سيکانو ماتې وخوړه.
نواب بهادر خان د دغه جنګ حال احمد شاه ابدالي اود ډېلي مغل واکمن دواړو ته ورکړو. خو د سيکانو حملی روانی وی. د ۱۷۶۷ په سر کې نواب د سيکانو د سازشونو او د هغوی له حملو او تاړاکونو نه دومره بی زاره شو چې د يو سخت جنګ پرېکړه يې وکړه. د ټيبه په کلي کی يې د امرسنګ د ځواک سره مخامخ شوخو د رياست پوځ هېڅ جنګ ونه کړاودرې نورې سيمې يې له

لاسه ووتلې . احمد شاه ابدالي په وروستۍ ځل په ۱۷۶۷ م کې په هند لښکر کشي وکړه. که څه هم نواب دهغه تگ لاری سره جوړ نه و خو بیا هم لاهورکې يې ورسره ولیدل خواحمدشاه ته يې د نذر لپاره هېڅ ورنه کړل. په هغه وخت د یو بر لاسی واکمن ته نذر نه ورکول د هغه سپکاوی گڼل کېدو.

نواب افتخار پخپل تاریخ کی د بهادر خان لپاره د اوړو پوزه جوړوئ او لیکي چی هغه وخت د مالېر کوټله خزانه تشه وه. بیا لیکی چی په لودیانه کې کله چی احمد شاه ابدالي له راجا امرسنگ سره ولېدل نوهغه ورته ځلورلکه روپۍ د نذرپه توگه ورکړې. افغان پاچل په دی موقع هغه ته د راجاگانوراجه بهادرخطاب ورکړ. د دې سره يې هغه ته قیمتي تحفې، یو بېرغ او ډول هم وسپارلو چې د خپلواکۍ نښې وې. احمد شاه دده نه دمالیرکوټله د نیول شووکلیو اوځمکوهیڅ حساب و نه غوښتو، نه يې د پښتنو ددی ریاست دخوندي توب ضمانت تری واخیستو. خو د هغه وخت هندوستان په یو داسی پېچلی سیاست کی راگېر و چی افغان پاچاد ټولو ستونزی نه شوی هوارولی.

نواب اوس په دې پوه شوی و چې په هېچا تکېه نه شي کولي. په ۱۷۶۹ کې دی دمنصورپور سره نژدې د راجاامرسنگ سره په یو جنگ کی د دېرشو کالو په عمرکی ووژل شواو مړی يې کور ته را وړل شو. ده درې کاله نوابي وکړه. د مالېر کوټلې ریاست د سرکاري اسنادو نه څرگندېږي چې د نواب بهادرخان له مرگه وروسته اته اویا زره روپۍ او اویا کلي د هغه زامنو ته په میراث کی پاته شول.

اوس د ده ناسکه وروړعمرخان په گدۍ کېناست اود بهیکن خان کونډۍ نادره بیگم ته يې ډاډ ورکړو چې کله يې وریرونه لوئ شول نونوابي به ورته پرېږدي. ټول خپلوان يې یو ځای کړل او د خپلو ځمکو او کلیو د بېرته نیولو لپاره يې نوې پالیسي جوړه کړه او هغه دا وه چې د لویوریاستونود پوځونو سره د جنگ پر ځای په هغوئ گوریلائ حملې وکړي هم هاغسې لکه چې سیکانو

کولې. په دې طریقه هغه د خپلو دووورونو عطاالله او اسدالله په مرسته خپل شپاړلس کلي د سیکانو له منګولو بېرته راخلاص کړل.
د ده یوه تګ لاره دا وه چې که د جنګ په مېدان کې دښمن درته زورور ښکاریدو نوخبروته یې اړکړه. خوکومې ځمکې چې د پټیاله راجا له دوی نیولې وې په هېڅ صورت یې پرېښودو ته چمتو نه و. ددی ځمکی په سربیا جنګ وننښتو. نواب عمرخان په ۱۷۲۹ م کې خپل شپږ زره جنګیالي د مالېرکوټلې نه را وویستل او شپږ مېله لېرې د بودان نومې ځای کې یې ټولو ته اعلان وکړچې دوی به د پټیالې له ځواک سره جنګېږي او ټیبه کلي به اخلي او که څوک د ځان ژغورولوخیال لري نوله دې ځایه دې بېرته ولاړ شي خو د تل لپاره به بیا ورته فراري ویل کېږي. په بله ورځ سخته جګړه وننښته، یوه ګولۍ د عطاالله په پښه ولګېده او پریوت. یو چا دده وروراسدالله ته خبرورکړخو هغه هرڅه خدای ته سپارلی او جنګ یې روان وساته. عطاالله بیا په اس سپورشواوترهغې د ده جنګیالی د کلي د کلا تردروازې رسېدلي و.
عطا الله د خپلې نېزې سره د کلا د دروازې کونډه ماته کړه او له ځواکونو سره یوځای په کلي ور ننوتل، نژدې وه چې پوځیانو لوټ مار شروع کړی وای چې د ښځو او ماشومانو په شوراو زورږ دوی تم شواو کلی تسلیم شو.
راجا امرسنګ خپل تازه کمک وراستولی و خو اوس عطاالله خپلې پښې ټینګې کړې وې. راجا کلي محاصره کړو، د رای کوټ نواب او نورو راجاګانوپه امرسنګ زورراوړ چې د روغې جوړې او خبرو اتروله لارې دغه ستونزه هواره کړي. سیکانو هم لېدل چې د مالېرکوټلې په کورنۍ کې یو وارې بیا اتحاد پېدا شوی دی او د جنګ لپاره پوره چمتوالي لري. نو روغی ته یې غاړه کېښوده
د ټیبه کلي د اویاوو نوروکلیو په بدل کې بېرته سیکانو ته ورکړل شو او د سولې تړون وشو. د دغه تړون له مخی هغه ټول کلي چې بهلول لودي

صدرالدین ته ورکړي و ببرته د مالېرکوټلې سره پاتې شول او دواړه ریاستونه دی ته هم راضي شول چي که هر چا دوئ ته خطر جوړو او یا یې وربادنی حمله وکړه نو بل به ورسره مرستې ته حاضرېږی. نواب عمر خان د بری نه وروسته خپلو خپلوانو ته ځمکې او جاګېرونه ورکړل خو په دی کې د نواب بهادرخان د زامنو برخه څکه نه وه چي د تېرو دریوکلونو د جنګونواوځمکو له لاسه ورکولو پړه پرنواب بهادرخان اچول کېده. په دی فېصله د بهادرخان اته زامن له ترونو سره ناندریو ته ودرېدل. د دوی نومونه سربلند خان،قادر بخش خان،مهدي خان(محي الدین)،سکندر خان،فتح علي خان،سعادت خان،طالع مند خان اوخان بهادر دي. د مهدي خان او فتح علي خان د لمسو اولادونه اوس ځېني په مالېر کوټله او ځېنې نور یې بیا په لاهور کې ژوند کوي.

نوی ملګری نوی دښمن

په پټیاله کې دالا سنګ سپین سرې مورراني فتو په لوی تالار کې په تخت ناسته وه، مخامخ ورته دواړه لمسي ولاړ و یو همت سنګ او بل امر سنګ نومېږی. د هغې نږور راني حکمان هم هلته ناسته ده. دا لومړی ځل نه دی چي دواړه وروڼه د نیان په وړاندي لکه دمجرمانو ولاړ و، ځو کاله وړاندې هم د دوی د پلار الا سنګ د مړینی د وروستیو مراسمو په ورځ شخړه پیدا شوې وه.

همت سنګ د پلار مشر زوی دی خو راني فتو په دې کې شک لري، د هغه مور د الا سنګ د ورور کونډه وه او له واده وروسته راني فتو په دې نه پوهېده چي همت د الا سنګ زوی و او که وراره. امر سنګ کشر دی او دا خبره یقیني ده چي دی د الا سنګ زوی و، همدا سوب و چي امرسنګ د راجه په توګه ونومول شو، همت سنګ په دې خبره خپه شو او د خپل حق د ترلاسه کولو لپاره یې جنګ ته لاس واچوو.

امر سنګ د شاوخوا نژدې ټولو راجاګانو ته لیکونه واستول چې د همت سنګ په ضد د ده ملاتړ وکړي، نواب عمر خان ته یې هم لیک ور واستو چې دوروستي ترون له مخې دی ورسره مرستې وکړی. عمر خان درې زره عسکر د خپل وراره وزیرخان( د بهیکن خان ځوئ) په مشرۍ پټیالې ته ور واستول او دنده یې دا وه چې د مجهیل سیکانو مخه ونیسي چې په پټیاله ریاست کې داخل نه شي. دوئ د همت سنګ په ملاتړ هلته ورغلي و.
وزیر خان سره شاوخوا دوه زره نور سیک پوځیان مله شول، ده په ډېرې کامیابۍ د مجهېل سیکانود دغې ډلې نه د خپلو جنګیالو کړۍ تاوې کړې اوپیغام یې ورواستووچې که هرلور ته یې د خوځېدو جرات وکړ نوختم به شي. مجهیل سیکانود پیسو په ورکولوځان خلاص کړوخوهمت سنګ بهواني ګړه او د مالېرکوټله د افغانانو ځینی کلي ونیول. اوراني فتو دواړه ورونه د روغې جوړې لپاره ځان ته راوبلل. دی خپل لمسي همت سنګ ته د نورومزکوپه ورکولوهغه نه د جنګ د نه کولو ژمنه واخیسته او په اخر کې دی بې له جنګه له بهواني ګړه نه ووتلو. پټیاله د ېو لوئ کورنئ جنګ نه په امن شو.
د دې مرستې په بدل کې امرسنګ د رای کوټ نواب او وزیرخان ته د مننې په توګه دوه دوه خلعتونه او پنځه پنځه زره روپۍ انعام ورکړې، هغو عسکرو ته یې هم انعامونه ورکړل چې په دغه جګړه کې یې ګډون کړی و. له دې پېښې وروسته په سیمه کې د مالېر کوټله ملګرتیا زیاته شوه. په ۱۷۷۸ م کې امرسنګ د خپلی یوې بلې شخړې لپاره په عمر خان غږ وکړ او مالیرکوټله ورسره مرسته وکړه. په دې ډول مالېر کوټله په سیکانو کی خپل ملګري پیدا کړل چې د خطر پرمهال به ورسره مرستې ته ودربدل.
عمرخان څوارلس کاله یې په ډېرې کامیابۍ د مشري کولو وروسته په ۱۷۸۰ م کې مړ شو او ، ده د خپلوخپلوانواومالېرکوټله د عاموخلکودا حترام ترلاسه

کولو سره سره د سیکانود حملو په وړاندې د یوښه سیاست پرمټ خپل خلک وژغورل. د ده یو زوی حسن خان او یوه لور جهنده وه، دوه نور زامن توره بازخان او سلطان خان د ده په ژوند کې مړه شوي و.
د عمر خان نه وروسته د ده یو بل ورور اود جمال خان زوی اسدالله خان په ۱۷۸۰ م کې نواب شو، که څه هم د بهیکن زوی وزیر خان اوس ځوان و او د بهادر خان زوی هم د دې جوګه وچې د پلار ځای ناستی شوی وای خو د مشری لپاره د سپین ږیرو حق تر دی وخته ساتل کېدو. اسدالله هم لکه د عمر خان په سیاست او روغې جوړې د مالېر کوټله ګاونډیانو سره معاملې هوارولې.
په پټیاله کې امرسنګ راجا د ۳۵ کلونو په عمر کې مړ شو او راني حکمان(د الا سنګ ښځه) د هغه شپږ کلن زوی صاحب سنګ د راجا په ګدۍ کښېنولو. شاوخوا راجاګانو دې ریاست ته نیت بد کړی و. همدا وه چې راني حکمان نواب اسدالله خان نه د مرستې غوښتنه وکړه، نودی په خپله د دې خطر د مخنیوي لپاره یولوی پوځ پټیالی ته ورواستو. څلورکاله د نوابۍ نه وروسته اسدالله خان مړ شواو له ده څخه دوه کونډې نوران بیګم او سلطان بي بي پاتې شوی. د ده یو زوی محمد علي نومېده چې د پلار نه څه موده وروسته په یوې ناروغۍ مړ شو.
دبهیکن خان د زوی وزیرخان یو واري بیا هیله پیدا شوه، چې هغسې چې دده ترونو دده له مور نادره بېګم سره لوز کړی و، ده ته به اوس د مالېر کوټله نوابي په لاس ورشي خو داسی وونشوه. د مشری لپاره نوردعوېداران را پورته شول او نژدې وه چې په مالیر کوټله کی کورنۍ جنګ انښتی وای، د رای کوټ مشر د دوی ترمنځ روغه وکړه، او وزیرخان خپل بل تره عطاالله خان ته د نواب ګدۍ په دې شرط پرېښوده چې د ده له مړینې وروسته به دده ( وزیر خان) دوه زامن نوابان کېږي.

د مالېرکوټله په یو کلي کې ځوانان ارهټ ته را ټول دي. د کوهي نه د اوبو د راویستلو لپاره غوایې د کوهي نه تاوېږي. یو غښتلي ځوان وړاندې شو او هغه پړی یې را ونیوه چې غویې پرې تړلي دی. ده پړی په خپلو لاسونو کې ټینګ نیولی دی او غویې نه پرېږدي چې وړاندې لاړ شي. د را ټولو خلکو ناری او شورځوږ شونو ځوان پړی پرېږدي. دا ځوان عطاالله خان دی.
څو ورځې وړاندې ده د خپلې مورد صندوق نه د سپینو سیکه په خپلو ګوتوکې مروړلې او د هغې د پاسه یې جوړ نقشونه سولولي و. ده د سرو زرو ځینې غټې سیکې تاوې کړې وې. مور ترېنه په قهر پوښتنه وکړه نو ده ژرټولې سیکې بیا تاوې کړې او خپل اصل حالت ته یې را واړولې خو سولېدلي نقشونه یې بیا نه شول جوړولی. یوه ورځ یې د جاموخرڅونکي بزاز نه د اوسپنې ګز واخیست، خپلی لیندئ (کمان) کې یې د غشي په توګه و ټومبلو او په یو پوخ دیوال کې وویشت چې په کې خښ شو. یو ځل یې له یو سیک سره مقابله وه چې په خپل یوغشي د اووه وزود سورئ کولو دعوا یې کوله.
عطاالله دا سیک له ښار نه بهریوړ. د بوې زړې ونې تنه چې چاودېدلې وه په لاسونوونیوله، د سیک لینده یې په کې کېښوده او ورته یې وویل اوس دا راوباسه. دعطاالله خان په اړه دا کیسی اوس هم د مالېرکوټله ځوانان په خوند یو بل ته کوئ.
عطاالله هم د نواب کېدو وروسته دخپلوورونوپه شان د پټیالې اود سیمې له راجاګانو سره ښې اړیکي وساتلې او د خطر پرمهال به یې له یوبل سره مرسته کوله. د یوڅه وخت لپاره دغلته ارامي راغله خوپه ۱۷۸۲ م کې د پنجاب ځینی سیمی وچکالئ وزپلی. د سیکانو یوی ډلې د چواړ سنګ په مشرۍ ډاکې او چور چپاوو پیل کړل. اوتر ټولو لوی خطریې د پټیالې ریاست ته جوړ کړو، چې دلته یو ماشوم راجا د واک په ګدۍ ناست و. چواړسنګ د دې د برناله سیمه محاصره کړې وه.

د پټیالې دیوان نانومل یو هوښیار سړی و، چواړ سنګ ته یې پیغام ورواستووچې ولی له کوم دلیل پرته د جنګ نارې وهې. چواړ سنګ ورته وویل موږ یوازې په دالو، جواروااوربشوګوزاره نه شو کولی، زموږ غنم او وریجې په کار دي. د سیمې راجاګانود خبرواترونه وروسته پریکړه وکړه چې که چواړسنګ ته یوځوکلي ورکړل شي نودی به خپل غنم او وریجې ولري. په دې وخت کې نواب عطاالله خان دده ضمانت وکړاو د برناله کلابندي پای ته ورسېده. چواړ سنګ ته د کلیو د ورکولو کاروځنډېد نوهغه په نواب عطاالله زور راوړ چې خپله ژمنه دې پوره کړي.
نواب د پټیالې راجا ته د یادونې لیک ور واستوخو هېڅ ځواب یې ترلاسه نه کړ. چواړسنګ داسې فکر کاووه چې نواب د ده خبره نوروته نه وه رسولې او په دغې بدګمانۍ یې د مالېر کوټله په کنګن وال نومي کلي لښکر ورمات او د ده په ځمکو ولاړشنه فصلونه یې لاس لاندې کړل. پخوا تر دې چې سیکانو په سیمه کې چورتالان ګډ کړي وائ عطاالله سم د لاسه د چواړسنګ سره د لیدو فېصله وکړه. ده نورو راجه ګانواوپه تېره د پټیالی راجا ته یو لیک ور واستو چې خپله پریکړه دې ژرترژره عملي کړي. اوکه داسی ونشول نودی مجبوره دی چې چواړسنګ سره لاس یو کړي.
نانومل د پټیالې نه مالېرکوټله ته ورغی او د کلیود ورکولوکارد قوالو په ورکولوترسره شو. نواب هغه ټول عسکرچې د چواړسنګ د حملې د مخ نیوی لپاره مالیر کوټلی ته ورغلي و خپلوخپلو ریاستونو ته بېرته رخصت کړل. د پټیالې راجا صاحب سنګ د تړون په نه عملی کولونانومل ته په قهرو. دهغه ټول جایدادیې ضبط کړو،او د نانومل خپل خپلوان چې په پټیاله کې یې لوړې عهدې لرلی، له کارونووشړل.
نانومل د مالېرکوټله نواب سره پناه واخیسته او داسې اوازه یې ګډه کړه چې د پټیالې خزانه تشه ده او داچې ولس له راجا نه بی زاره دی. ده نواب ته پخپلې

کورنۍ شوی د ظلم کیسی دومره وپړسولی چې نواب عطاالله سملاسي پټیالی ته لښکر ورواستو. په دی کارهغه مالېرکوټله بیا دجنګ کندی ته ورټېله کړو. د پټیالي په دفاع اود تړون ترمخی ګاونډ یوخپل پوځونه ورواستول اود مالېر پوځ په جنګ کی ماتې وخوړه. نانومل محض د خپل غچ اخیستولپاره نواب وغولوه. د جنګ نه وروسته پټیالی مالېر کوټله ته پېغام ورواستو چی نانو مل دی ورته وسپاری خو نواب انکار وکړ. دی پوهېدو چې هلته به ووژل شي نو ځکه یې تر پایه له ځانه سره وساتلو. نانو مل په ۱۷۹۲ م کې مړ شو اوپه مالېر کوټله کې د هندو مذهب د دود سره سم وسوځول شو.

نواب عطاالله له پټیالې سره بیا روغه وکړه خو په ۱۷۹۲ م کې یو بل خطر را ولاړ شو. سیک مشربېدي صاحب سنګ چې یو مذهبي توندلاری وامرتسر ته ورسېد او ټولو سیکانوته یې د کوټلې دافغانانو پرضد د پاسون غږ وکړوځکه چې هلته اوسېدونکو مسلمانانود غواغوښه خوړله. که څه هم سیکانود غوا په معامله د هندوانو په شان مذهبی احساسات نه لرل خو د مسلمانانود مشرانوپه ضد یې د پخوانۍ تربګنۍ احساس لا پاتې و. ده د پنځلسو سوو جنګیالود لښکر سره مالېر کوټله محاصره کړه.

نواب عطاالله د دې حملې لپاره تیارنه و. ځینی سیکان ښار ته ور ننوتل اوچورتالان یې ورګډ کړو. خانان د کوټلې په کلا کې بند پاته شول او پوځي افسرانو چی د قلا نه بهرود یو تکړه قوماندان په غېر موجودګئ هېڅ جنګ ونه کړ. دوه ورځې وروسته د نورو ریاستونو کومک را ورسېد خودا څرګنده وه چې سیک پوځیانو به د خپل یو مذهبي مشرپه وړاندې چرې هم جنګ نه وای کړی. دوئ دجنګ پرځای بېدي صاحب سنګ ته دبېرته ورتګ وویل چې په لومړیو دووورځو په اخوډب کې په یوه ګولۍ ټپي شوی و. د هغه ملګری بګهیل سنګ دلوټ شوي مال د ترلاسه کولوپه هیله وخواوس یې داهیله د نورو ریاستونو د پوځ په راتلوختمه شوې وه. نواب عطاالله ورسره لوزکړې

وچې که بېدي صاحب بېرته وروګرځوئ نو دوه زره روپۍ به ورله ورکړي.
بګهیل سنګ د خپل لښکرسره یوځای له هغه نه بېل اودمالېرکوټله نواب ته ورواورېدوخود نورو پوځونو په راتګ نواب عطاالله دا روپۍ پنځه سوه پنځه ویشتو ته را ټیټې کړې. تاراسنګ، کرم سنګ او ګورودت سنګ چې د بېدي صاحب سره مله وهغوئ ته یې هم پېسی ورکړی. مالېر کوټله ددی شخړی د ختمولولپاره سیکانو ته ټولټال یودیرش زره روپۍ نذرورکړې.
د نواب عطاالله د مرستې لپاره ورغلي د پټیالې پوځي مشربخشي سیدا ته د پوځ لګښت او یوخلعت ورکولو وروسته د خدای په امانۍ مراسم تر سره شول خود دوئ راجا وروسته هم پاتې و. د هغه مشاورینو ورته ویلي وچې له نواب نه دې یو څه نورهم ترلاسه کړي اوکه اړتیا ولېدل شوه نود زورنه دې کاروا خلي. دوی خبروچې د مالیر کوټله خزانه تشه وه اودبېدی صاحب سنګ جنګیالو ورته ډېرتاوان رسولی و، خوغوښتل یې چې یو څو کلي تري واخلي.
د کوټلی په ېوی زړی ودانئ کې دخواجه خضرخان(چې د یو جنګ شهیدو) قبرجوړو، د پټیالی سیکانود شپې دا قبر وکینده او مړی یې ترې را وویست چې له دې سره د مالیرافغانان سخت را وپاریدل. نواب غوښتل چې د سولې له لارې دا لانجه هواره کړي خووزیر خان او توره بازخان په ډېرقهراوغصې راجا ته ورغلل او هغه ته یې یادونه وکړه چې د پټیالې په دفاع کی د نورو سیکانوسره جنګ لپاره راجا دوی ته پېسې اوتاوان نه و ورکړی. وزیرخان وویل چې دوی به سرونه ورکړي خو د خپل یو شهید د مړي سپکاوی ونه زغمی. په دې وخت کې د راجا مور چې هلته موجوده وه دا خبرې واورېدې او د وزیر خان غصه یې سړه کړه. هغې سیک پوځ ملامته کړاو ژمنه یې وکړه چې مجرمانو ته به سزاورکوئ، خو نواب ټولو ته معافی اعلان کړه او د موهرانه کلې یې بخشي سبدا ته وروبښلو.

د ببدي صاحب په يرغل ماليركوټله اوسېدونكود وېرى احساس وكړو. بى شمېروله دې ځايه كډه وكړه او د پنجاب په هغو سيمو كې يې ژوند پيل كړچې ورته خوندي ښكارېدل. په ۱۷۹۷ م كې ببدي صاحب سنګ له اتو زروجنګياليو سره راى كوټ ته مخه كړه، هغه وخت ددى مشرد پنځلسو كالوهلك و چې د خپل ديوان روشن خان ترڅارنې لاندې يې رائ كوټ اداره كاوه. دى په جنګ كې ووژل شو. وزيرخان د پنځوسو جنګياليو سره ددوى مرستې ته ورسېدو، دپخوا په څېرله ببدي صاحب سنګ سره مله سردارانو ته يې پيسى وركړې او دوى له مېدانه ووتل. په ۱۷۹۸ م كې ببدي صاحب په امرتسر كې يوواري بيا دمالېركوټله اوراى كوټ په ضد د مذهبي جنګ ناره وكړه، راى كوټ يې ونيوا وكوم ځايونه چې پخوا مالېركوټله ترې اخيستي وبېرته يې ترى ونيول. دغه رازله مغلو نه يې لوديانه ونيوله.

په دې وخت كې دهندوستان حالت لكه يومړژواندى مارغه وچې له هرې خوانه وربانديې ټپوس، كارغه اونوروحشي ځناوراخته واود دې غوښې يې خوړلې. انګريزانوددى د سوېل په سمندرى پلو خپلې مستعمرې او پوځې چاونۍ جوړې كړې وې بل لوري ته يې د ډېلي په دربار كې خپله اغېزه زياته كړى وه. د مرهټوپاتې شونود يواروپايي جنرال پېرون په مشرۍ منظم پوځ په جوړولولاس پورى كړى وچې عسكرويې ښې نوې وسلې چلولې شواى. يوانګريزجارج تهامس له خپل پوځ نه بيل شوى، ځان ته يې لښكر جوړ كړى او هانسي كې يې سنګر نيولى و. ده شاوخوا راجاګانو ته به يې پيغامونه وراستول چې كه خپله دفاع غواړي نو دى ورسره مرسته كولى شي. نوموړي دامرتسرسره نژدې د جند كلا نيولې وه او سيكانو دده سره د دغرى زور نه لاره. نواب عطاالله اود راى كوټ مشر، تهامس ته پيغام واستوو چې د ببدي صاحب سره د جنګ لپاره به ورله يولك روپۍ وركړي. د ببدي صاحب

جاسوسانو هغه ته دا خبر راوړنوده له وېرې راى کوټ نه خپل جنګيالي
وويستل.
دافغانستان شاه زمان لښکرهم دا مهال د پنجاب په خاوره کې و. او سيکانو
بيلا بيلو ډلواوس دده د مقابلې لپاره يو نوي مشرته سترګې نيولې وې چې هم
يې پوځي واک لاره اوهم په سياست پوهېدو. دامشررنجيت سنګ نومېدو.
رنجيت سنګ په ۱۷۸۰ ميلادی کال کې د پاکستان دګوجرانواله په يوې جټې
کورنۍ کې زېږېدلی و دده پلار مهان سنګ د سيکانو د يوې پوځي ډلې
مشراود ګوجرانواله شاوخوا ځمکې يې کنټرولولې. دی دولس کلن و چې
پلار يې مړشواو په همدې عمر کې د خپل پلارځای ناستی شو. د ماشومتوب
نه يې داس ځغلونې اوجنګي روزنه اخيستې وه. ده د مشر کېدو سره سم په
ځوکالوکی يې د سيکانو يوعصري پوځ جوړکړوچې په اروپايي ډوله بارکونو
کې اوسېدواو سيک خالصه نومېدو. خو رنجيت سنګ پخپله مذهبي نه واو
د سيمې د مسلمانانو ترمنځ يې ښه نوم لاره.
په۱۷۹۴او۱۷۹۵ ميلادی کلونو کی د احمد شاه ابدالی لمسي شاه زمان د
حسن ابدال او د جهېلم د سيند سره نږدی په ځو وړوجنګونو کی سيکانو نه د
پنجاب د نيولو هڅه وکړه خو دغه وخت د انګرېزانو په لمسون د ايران له
خواورته په افغانستان د حملی ګواښ وشو او دی بېرته کابل ته ولاړو. د
روهتاس قلاهم د افغانانو د لاسه ووتله او رنجيت سنګ ونيوله. شاه زمان په
۱۷۹۲ کی د بو لوئ حملی لپاره د اباسين نه پوری وتلو. ده سره دری زره
افغان جنګيالی واو هيله يې دا وه چی د پخوا په څېر د هندوستان مسلمانان
به ورسره مله شي. رنجيت سينګ او نور سيک مشران په امرتسر کی راټول
شول اونږدی وه چی د کشميرغرونو ته يې تېښته کړی وائ چی د سيکانو د
يوی جنګی ډلی مشری مېرمن سدا کورپه ټولوغږ وکړوچی دافغانانومقابلی
ته دی ودرېږی. سيکانو اتحاد وکړواو د رنجيت سينګ په مشرئ په لاهور

گوریلائۍ حملې پیل کړې چې هغه وخت د افغانانو په لاس کې و. خو په ۱۷۹۷ کې د زمان ورور شاه محمود بغاوت وکړ او شاه زمان مجبوره شو چې کابل ته ولاړ شي. هم هلته په داخلي بغاوتونو کې ونیول شو، سترګې یې ورته ړندې کړې او دی د خپلې کورنۍ سره بېرته پنجاب ته ولاړو. د ژوند تر پایه دی په لودیانې کې د انګرېزانو په زیره وسېدو. رنجیت سینګ ورو ورو د ستلج سیمې پخپل کنټرول کې وا خیستې او لاهور یې د راجوا ړې مرکزشو.
په ۱۸۰۱م کې ده ته د مها راجه لقب ورکړی شو او د لوېدیځ پنجاب د مسلمانانو هغو سیمو کې یې ارامي راوسته چې له تېرو دوو لسېزو راهیسې په کې د خلکو ژوند تریخ و. د ستلج سیند د ده د حکومت وروستۍ حد و. د سیند نه پورې په ختیځ پنجاب کې جارج تهامس د برتانیا لپاره ځمکه هوا روله. خود مرهټو جنرال پیرون هم د ختیځ پنجاب د واکمنو مرستې ته تیارو. ده ټولو ته پیغام ورکړ چې که د خپلو ځمکو ځلورمه برخه حاصل ورته ورکړي نو له جارج تهامس نه به یې وژغوري. ددې نه علاوه ده د نذرانې د پېسو غوښتنه هم وکړه. خپله لوظنامه یې په لیکلې بڼه ټولو ته واستوله چې د هغې ترمخه که یو ریاست ده ته په ټاکلي وخت پېسې ورنه کړې نو هغه سیمه به دده وي.
مالېرکوټله د خپل دفاع لپاره لس زره روپۍ ورته ومنلې. پټیاله لوی ریاست و نود یو نیمو لکو روپود ورکولو ژمنه یې وکړه. ددې تړون یو شرط دا و چې ټولې پیسې به په قسطونو ورکول کېدې او د لوظنامې موده به له هغه وخته پیل کېده چې مرهټه پوځ د پنجاب په لورې خوځیدو. خود جنرال پیرون دا ټول پلانونه له خاورې سره خاورې شول، د ۱۸۰۳ کال د دسمبر په میاشت کې د برتانیا د لارډ لیک په مشرۍ یو منظم پوځ مرهټو ته د ماتې ورکولو وروسته ددوئ د مشر جسونت رائ هولکر سره روغه وکړه او د ډېلي شاوخوا سیمې یې ترخپلې ولکې لاندې راوستې.

د جمنا او د ستلج ترمېنځ په پراخه خاوره دوه نورهندي افغان مشران چې
یو امیرخان او بل نجابت خان نومېدل دانګریزانوملګري شول. امیر خان
دټونک اونجابت خان دکنج پورې نوابان و. رنجیت سنګ چې د انګریزانود
پرمختګ نه خبرشونوخپل لښکریې د ستلج نه پورې ورواستوو، ځینې
ریاستونه یې د ګوانښ اوځینې نوریې بیا د روغې جوړې له لارې پخپل کنترول
کې واخیستل. په ۱۸۰۸ م کې مهاراجا رنجیت سنګ مالېرکوټله ته را
ورسېد او د نواب عطاالله خان نه یې د دې ډاډ په ورکولو چې دغه سیمه به
خوندي اوخلک به یې په امان وي، د پنځولکوروپو د نذرانې غوښتنه وکړه.
انګریزان له یوې خوا د رنجیت سنګ د موجودیت نه په ویره وخو له بلې خوا
نه یې غوښتل چې ورسره جنګ وکړي. ددوی استازی چارلس مېټکاف د
رنجیت سنګ سره خبرو اترو لپاره ورغلی واو د مالېر کوټلې سره نږدې
ایسارو.
نواب عطاالله خان سمدستي مېټکاف ته پیغام ورواستووچې پکی وېلی و.
ښایي انګریزان او سیکان دواړه اوس دمالیر کوټله لپاره ګډه پالیسي لري او
له ده به پېسې وغواړي. چارلس مېټکاف په دې خبرې ټکان وخوړځکه دا د
هغه یوه سفارتي تېروتنه وه. ده احساس وکړ چې که نورریاستونه هم له
رنجیت سنګ سره د ده ملاقات دا ډول تعبیروي چې ګوندې انګریزان ورسره
یوځای شوي دی نودهندوستان سیاسي نقشه به بدله شي. دی سملاسې د
رنجیت سنګ له کیمپ نه ووتواو د خپل سفارتي ډلې سره د فتح ګړ په کلا کې
یې واړول.
له دې پېښې شپږ ورځې وروسته د مالیرکوټله د خانانو یوې ډلې د نواب په
مشرۍ د رنجیت سنګ سره د روغې جوړې خبرې پیل کړې. د دوی دلیل دا و
چې د تېروڅو کلونودجنګ جګړوله کبله یې خزانه تشه وه او دومره ژر ورته دا
پېسې نه شي ورکولې، په خپلو مېنځو کې دوی په خپلې خپلې برخې جوړ

وچې څوک به څومره ونډه د رنجیت سنګ نذرانی ته برابروې. د منځګړتوب لپاره د جند او د بابها مشران هم په خبرو کې سره کښېناستل.
رنجیت سنګ د یرې ښځې درلودلې اوموران نومې مېرمنه یې مالیرکوټله ته ځان سره بېولی وه. هلته د بهیکن خان کونډه نادره بیګم تراوسه ژوندۍ وه او له سیاسي حالاتو نه یې ځان خبراوه. داسې ښکاري چی هغی او د نوابې کورنۍ نوروښځو موران ته میلمستیا وکړه او خپلې ستونزې یې ورته وویلې.
موران پررنجیت سنګ فشارراوړاوهغه د نذرانې پنځه لکه روپۍ یو نیمولکو ته را ټیټې کړې چې څلویښت زره یې هماغه وخت غوښتلې اود نورولپاره یې د ځینو کلوا جاره ومنله. خوددې نه علاوه رنجیت سنګ، وزیر خان او د مالېرکوټله یو منشي دیوان سنګ د یرغمل په توګه له ځانه سره یوړوچې د پېسو په پوره کولو به خوشی کېدو.
رنجیت سنګ اوس زور لګولی و چې د پنجاب ټوله خاوره د ده په قلمروکې شامله شي او د دې لپاره هغه د مالیرکوټلی نه انبالې ته ولاړو. دهغه ځای د راجه دکونډې نه یې ټول قیمتي کالي پتري په زوره واخیستل اوریاست یې ځان ته کړو. بیا یې د شاه اباد خاوره ونیوله او نورو راجاګانوته د نذرانې د ورکولو او د ده د حاکمیت د منلو پیغامونه واستول. انګریزان د ده په نیت پوه واوسم د لاسه یې اعلان وکړ چې د ختیځ پنجاب ټول ریاستونه به د دوی تر ژغورنې لاندې وي.
دا د رنجیت سینګ لپاره یو سیاسي ګوزار واو ده غوښتل چې له دغه اعلان نه سرغړونه وکړی خو پوهېدوچې انګریزان به دومره په اسانه دا سیمې هغه ته پرې نهږدي. بلې خوا ته هغه د لاهور نه وراخوا پېښوراوکشمیرته هم پلانونه لرل نو دجنګ نه یې ډډه وکړه او په ۱۸۰۹ م کې دانګریزانوسره یې یوتړون وکړو. د تړون له مخې د ستلج نه پورې لویدیځه سېمه د رنجیت سنګ وه چی انګریز به پرې غرض نه لارو.

دترړون نه وروسته د پنجاب دغه سیمی ارامه شوی. د مالېرکوټله هغه پینځه کلي چې رنجیت سنگ ته په اجاره ورکړی شوی وی، انگریزانو پرې خپټه اچولې وه. په دې کلیو پخواراهیسی وزیرخان او د ده تربور رحمت علي چې د نواب عطاالله خان زوی ودعوې کولې. په ۱۸۱۰ کې نواب عطاالله مړ شو اود دواړوتربورانوترمنځ دمیراث زړه شخړه بیا راپورته شوه. دنواب عطاالله د واک ځینې پربکړې مالېر کوټله لپاره بدی وی اوپه هغه یوه نیوکه دا وه چی د فېصلې قوت یې نه لاره. یوې خواته به یې د جنگ لپاره چمتوالی نیوه او بلې خواته به یې د روغی لپاره سیکانو ته پېسې ورکولې. او تل د خپلو خپلوانو نه به یې پیسې غوښتې. دی خوشبخته و چې د وزیرخان غوندې کوماندان ورسره وچی په پوځې تاکتیکونو ښه پوهېدو اودخپل تره سره به د خطر پرمهال درېدو. وزیرخان ډېر په صبرد نوابي گدئ خپلو ترونو ته پرېښبی وه او ټولواوس هغه د مالېر کوټله د نواب په توگه لیدل غوښته. خو د عطاالله خان ځوئ رحمت علی خپل ځان د پلارځای ناستی گڼلو. تر دی دمه د مالېرکوټله نوابی به ترټولو سپین ږیری ته ورکول کېده اودا د زیاتو پښتنو لپاره د منلووړو.

رحمت علي د نوابۍ لپاره انگریزانو ته خپله دعوه یوړه خوهغوی د رنجیت سنگ سره خبرو اترو پروخت د وزیرخان استعداد لیدلی و.

انگریزانود هندوستان لپاره هغه مهال د وراثت قانون جوړکړو چې له مخې یې د یورئیس، نواب اوراجه له مړېنې وروسته به د هغه مشرزوئ د هغه ځای نیوه. که یوراجا یا نواب بي اولاده مړ شو نو د هغه سیمه به د انگریزترقبضې لاندې راغلله. جینکو ته د پلار په گدۍ د کښېناستوحق نه و. رحمت علی د دغه قانون نه خبر و او همدا وه چې هغه ځان د پلار قانوني او جائزوارث گاڼه. هغه دا دلیل هم وړاندې کړوچې د مالېرکوټله سیمه د رنجیت سنگ له منگولو نه د ده پلار ژغورلې وه.

د وزیرخان دلیل دا و چې دده ترونو( دریو نوابانو) د ده له مور نادره بیګم سره لوظ کړی وچې همدی به نواب کېږي. هغې هم د خپل ځوئ د نوابئ لپاره ډېر انتظار کړی و. وزیرخان انګریزانو ته لیک ورواستووادی په ځواب کی دري میاشتی وروسته د انګریزانو له خوا یو لیک، یو خلعت، ګاڼې او سازکړی اس دوزیرخان د نوابۍ داعلان سره مالیر کوټه ته را ورسېدل.

## نولسمه پېړۍ

د مالېرکوټله په کلا کې د ځوانانو یوې ډلې د لومړي ځل لپاره یو ډول یونیفارم اغوستی اود دوی په لاسونو کې دغشواو لیندیو په ځای هغه ټوپکې وې چې دوی ورسره نا اشنا و خو د دوی چلول ورته خوند ورکو. نواب وزیرخان دا وخت پنځه سوه سپاره او دولس سوه پلي عسکرد انګریزانو ترڅار لاندې روزلي وخو په سېمه کې اوس امن و. د ده تربور رحمت علي د خپلو وروڼو امام علي او فاضل علي سره یوځای کله د انګرېز استاځی سره خبری کولې او کله یې ورته لیکونه استول. نوموړی د ګاونډیوراجاګانو سره هم لیده کاته وکړل خوهیڅا د ده مرسته نه شوی کولی.

په ۱۸۲۱ م کې وزیرخان پخپل مرګ مړشونو رحمت علی خپل زوی دلاورخان لودیانې اوامبالې ته ورواستوو چی انګریز استازي ته خپله د نوابئ دعوه وړاندې کړی. ده د خپلو ځمکو ټوله شتمني په رشوت او په نذرانو یو ځای بل ځای ورکوله. ډېرو خلکو ورته نصیحت وکړ چې دې خپل وخت ضایع کوئ خو دی د خپلی دعوی نه په شا نه شو. دوه نیمې میاشتې وروسته د انګریزاستازی مالېرکوټله ته ولاړ چې د هغه د ځوئ امیرعلي د نواب کېدومراسم له نژدې وځاري. اوس ډېرکارونه د انګرېزانو په دود کېدل او یودربار را بلل شوی و. رحمت علي هم په کې ګډون وکړاوپه ظاهر یې د خپل تربورځوئ ته سر ټیټ کړوخو په دې وخت کې خپل زوی دلاورخان یې کلکتې

ته واستوو چې دده د نوابئ د حق په اړه هلته له انګریزوالی سره خبرې اترې وکړي.
امیر علي واک ته له رسېدو سره سم یو مهم کار دا وکړ چې د مالیر کوټله په عامو خلکو لګېدلې مالیې یې لرې کړې. د سیمې خانانو د ټیټې طبقې خلکو نه بېګار اخیستو. په دوئ کې نای( ډم)، کلال، ترکاڼ( نجار)،زرګر او جولا شامل و، دوئ به د خپل عاید یوه برخه نواب ته د مالیې په توګه ورکوله.
انګریزانو امیرخان ته د نواب بهادر خطاب ورکړی و. د حیات افغاني لیکوال وایي په دې وخت کې " د مالیر کوټله عایدات د کال دوه نیم لکه روپۍ دي چې یو لک یې په خپله د نواب صاحب لپاره او پاتې یې په ټولو ورونړاو حقدارانو ویشل کېږي".
په ۱۸۳۹ م کې مها راجه رنجیت سنګ په لاهور کې مړ شونو د ده ځای ناستی او مشر زوی کهړک سنګ د دې جوګه نه و چې د خپل پلار په شان یې پنجاب اداره کړي وای او د هغه په کورنۍ کی د سازشونو او وژنو لړۍ پیل شوه.
په افغانستان کې هم واک له سدوزیو نه غلزیو ته ورغلی و. د شاه زمان ورورشهزاده شجاع د انګریزانو سره په لودیانه کې و او په همدې کال دوی د یو امیر په توګه افغانستان ته د هغه د وراستولو تابیا وکړه. ده ته یو اوږد سفر په مخ و او په لاره کې د سیکانوله سیمو تېرېدل و. نواب امیرعلي ته خواست وشو چې د شهزاده شجاع د بدرګې لپاره وسایل برابر کړي. هغه خپل با اعتباره کسان د مال او اسباب وړلو لپاره لودیانې ته ور واستول.
د نواب کورنۍ ځینې مشران د شهزاده شجاع سره د لودیانې نه پېښنورپورې بدرګه ولاړل. په ۱۸۳۹ د اګست په میاشت کې شهزاده شجاع د افغانستان د امیر په توګه کابل ته ورسېدواو د هغه د سیال دوست محمد د پلویانو قهرېې را وپاراوه. د انګریزانو نه د غچ اخیستو لپاره د امیر دوست محمد خان

زوی اکبرخان لښکر تيار کړ اودوی ته يې ماتې ورکړه. په دی پېښه په پنجاب کې انګرېزانو خپلو ټولو واکمنو پلويانو ته امر وکړ چې په سرهند کې دې خپلې پوځې ډلې راټولې کړي چی د ماليرکوټله يوه پوځې ډله هم پکی شامله وه. انګرېزانو دا ټولې ډلې معاينه کړې او له دوی نه يې غبنتلي او تکړه ځوانان په افغانستان کې د جنګ لپاره غوره کړل.

په ۱۸۴۵ م کې د رنجيت سنګ له زامنود هغه کشر زوی دليپ سنګ پاتې واو سيکانو په شاوخوا سيمو کې حملې بيا پيل کړې وې. هغه مرکزيت چې د رنجيت سنګ پر مهال واوس نه و. همدا وه چی انګريزان د يو سخت جنګ له لارې د ستلج نه پورې د رنجيت سنګ په سيمه کې وردننه شول اوهغه پاليسي چې په تاريخ کې "فارورډ پاليسي" نومېږي په عملي کولويې پيل وکړ، د پرمختګ په نوم د دغې پاليسی هدف د هغو سيمو کنټرول و چې په کې جنګ جګړې او شخړې وې. ددی پاليسۍ په عملی کولو کې د مالېرکوټله لخواانګريزانو سره مرسته وشوه اواوس د پېښور، ملتان، کشمير او دافغانستان د نيولو لپاره په لوديانه، پټياله اوسرهند کې پوځي اډې جوړې شوی. نواب اميرعلي خان په دې وخت کې سخت ناروغه شواو د مالېر کوټله چارې د ده زوی محبوب علي خان چې په خلکو کې يې د صوبې خان په نوم شهرت موندلی و، په غاړه اخيستې وې.

په۱۸۴۶ م د اپريل په مياشت کی اميرعلي د پينځيوشتو کلونو له نوابۍ وروسته وفات شو. د رحمت علي خان هيله بيا راتازه شوه چې کېدی شي د نوابۍ لپاره اوس د ده دعوه ومنل شي. خو د امير علي خان د مړينې په دريمه ورځ دده ځوئ محبوب علي خان ته د مشرۍ پټکی په سروتړل شو. سيکانوپه ضد جګړې کې د مرستې په منني انګريزانو محبوب علي خان ته د هزرايل هاي نېس خطاب ورکړ. په دې وخت کې يو سيک پوج مهتاب ريکهه د محبوب علي او د رحمت علي د کورنيو ترمنځ د روغې جوړې هڅې پيل کړې.

نواب د خپلې مور او مېرمنې سره د سپين ږيرى رحمت علي کور ته د ننواتې لپاره ورغلو. په هم هغه ماښام رحمت على د خپل زوى دلاورخان سره د نواب خدمت ته حاضر شو او دوى يو بل ته دتحفو په ورکولو روغه وکړه.
د نواب په غوښتنه هغه ټول جاګيراوکلي چې پخوا ورباندى دعوې کېدى، د هغه زوى دلاور علي خان ته وسپارل شول. د مالير کوټله دنوابانودخدمتونواو د پخلاينى لپاره انګريزانو رحمت على ته درې نور کلي د جاګير په توګه ورکړل. دا وخت په مالېر کوټله کې شامل ۴۳ کلي په داسې ځايونو کې وچې له نورورياستونوسره يې پولې شريکى وى اوتل به پرې شخړې کېدې. په ۱۸۴۷م کې انګريزانوددې سېمى ټولې ځمکې سروې کړې . د رياستونوټول استازي يې را وبلل او هر چاته يې خپل حدود وټاکل.
په ۱۸۴۸ کال کې د نواب محبوب علي خان د بوې راجپوتې کورنۍ جينۍ خوښه شوه او دده د دويم واده لپاره د جشن او موسيقۍ محفلونه جوړ شول. دده ځوئ سکندر علي خان په دې خبره سخت په قهر وخومحبوب علي خان په يوه ليکلي سند کې ورته ډاډ ورکړو چې د ده له مړينې وروسته به د نوابۍ حق هم د ده وې. رحمت على که څه هم د محبوب علي خان سره روغه کړې وه، د نوابئ د حق نه په شا شوى نه و. په ۱۸۵۲ م کى دى پخپله کلکتى ته ولاړاو خپله دعوا يې مخامخ انګرېز ګورنر جنرال ته وړاندى کړه چې هم هلته رد شوه. په هغه شپه زړه ماتى رحمت على خان ناروغه شو او څو ورځى وروسته د نوابئ په ارمان له نړئ رخصت شو. دده مړى په پورا سرکاري درنوئ مالېر کوټله ته يوړل شو او په ۱۹ فروري په شاهي هديره کى خاورو ته وسپارل شو.
په ۱۸۴۹ کال کې دانګريزانو اوسيکانو ترمنځ په دويمه جګړه کې سيکانو بيا ماتې وخوړه او ټول پنجاب د انګريزانو لاس ته کيوت. په ملتان کې د سيکانو لخوا يو وارې بيا د بغاوت لمبې پورته شوى او د خپلى ساتنى لپاره دوئ وروستئ جنګ وبايللو. د رنجيت سنګ له اولادونو نه يې ځينې له

انګریزانو سره یو ځای شوي واو کله چې په ۱۸۵۷ کې د هند مسلمان اوهندو پوځیانو په میرټ او بریلی کی د انګریزانو په ضد د ازادۍ جنګ پیل کړ نودوی یې دمقابلې لپاره ور واستول. نواب محبوب علی خان ته هم امر وشو چې خپل پوځ لودیانې ته یوسي.

نوموړی په نیمائ لاره کی د خپتې د غوټې له لاسه ناروغه شواو بېرته مالېرکوټلې ته ورستون شو، په خپل ځای یې خپل زوی سکندر علي خان ورواستو. هماغه وخت دجالندهرپوځیانوهم په خپل بارک کې د بغاوت بېرغ پورته کړاو انګریزانو سره دااند ېښنه پیدا شوه چې دوی به د مالېر کوټله په لورې وخوځېږي ځکه د ډېلي مغل پاچا مسلمان و اود دې سیمې ډېرو خلکواوس هم د انګریزانو په مقابله کې د مسلمانانوسره زړه سوی لرله. د ډېلي ښارکلابند شوی واو په سره قلا کې وروستئ مغل پاچا بهادر شاه ظفرلکه د یویرغمل پاتې و.

د نواب محبوب علي خان ناروغي انګریزانوته یوه بهانه ښکاره شوه او داسې یې ګڼل لکه چې هغه د دوی د مرستې نه پښې ویستلې وې، که څه هم د هغه ځوئ سکندر علي ورسره و.

د مالیرکوټله په جمال پورې کې یو سادهو(فقیر) عیدوشاه یو لیک ولیکلواو په لودیانې کې یووکیل رستم علي خان ته یې ورواستو.

په دې کې لیکلي و چې د انګریز حکومت به ډېر ژر پای ته ورسېږي. له بده مرغه دا لیک په لاره د انګریزانولاس ته ورغی. دوی سملاسي عیدو شاه او دهغه ملګری موهن لال ونیول اوپه دوی د غدارۍ مقدمه پیل شوه. د جون په پنځه ویشتمه ۱۸۵۷ د لودیانې په بندي خانه کې دوی دواړه غرغره شول.

نواب محبوب علي خان همدې کال د نومبرپه میاشت کې وفات شو. هغه مهال سکندرعلي په لودیانه کې وخو انګریزانو ورله اجازه ورنکړه چې د پلار جنازې ته ورشي. دوی د دې خبری سپیناوی کاوه چې د ډیلي پاچا بهادر شاه

ظفر ته يې د مرستې کوم پيغام خو نه و ورلېږلی. کله چې د دې خبرې پخلی وشو نو بيا يې پرېښود چې د خپل پلار د فاتحې مراسم پر ځای کړي. سکندر علي خان د پلار قانوني وارث و خو هغوی نه غوښتل چې د يو باغي پلار زوی دی نواب شی.

محبوب علي خان ډېر مذهبي کس و. ده به ساده لباس اغوستو او کله چې به سحر د اس سپرلۍ ته تلو نو په لاره کې به يې خيرات ورکاوه. نوموړی به کله کله ځمکو ته تلو او د کروند ګروسره به يې ليدل. ده به د برهمن او مسلمان ملايانو ډېر احترام کاوه او په هره مهمه موقع کې به يې له نجوميانو مشوره اخيسته. ده به د تله دان رسم هم کوو او صدقه اونذر به يې هم منل.

نواب سکندرعلي خان د پلار ځای ناستی و خو اوس د رحمت علی زوی دلاورعلي په ګدۍ دعوه وکړه. دده دليل دا و چې سکندرعلي خان ناځوانه و او دا چې د حکومت جوګه نه و. خود دې ثبوت ورسره نه و. د لودیانې کمشنر او دهغه مرستيال سکندرعلي خان شخصي پېژند ګلوي لرله او دومره ژربې د هغه په اړه قضاوت نه شوای کولی. کمشنر يو ډاکټر د لوديانې نه مالېرکوټله ته ور واستوو چې د سکندرعلي خان فزيکي معاينه وکړي. ډاکټر په خپل رپورټ کې وليکل چې دی روغ و اود نامردئ خبره دروغ وه. د پټياليې راجا نريندرسنګ د سکندرعلي خان ملګری و ده هم انګريزانو ته ډاډ ورکړ. په اخره کی د دلاورعلي دعوه رد شوه او سکندر علي خان په رسمي توګه د مالېر کوټله نواب وټاکل شو.

نواب سکندر علي خان د خپل پلار په شان ساده طبيعت سړی و اوله رسمي موقعو نه پرته به په ساده لباس کې ګرځېدو. د ده لومړی کار دا و چې د هر لګښت لپاره يې بوديجه و ټاکله اود پېسو حساب کتاب يې غښتلی کړ. په خپلو ځمکو يې په خپل نوم د سکندر پوره نومی کلی اباد کړ، د غوث ګنج په نوم يو نوی مارکيټ يې جوړ کړ وچې کليوال خلک د ښارد کاروباری سيستم

سره اشنا کړي. د ریاست د ښه انتظام لپاره هغه د منصورپور یو اوسېدونکی کامدار خان راوستو او د مشروزیرپه توګه یې وګمارو او د هغه په مشورې نواب د دوو کسانو نه علاوه د ریاست ټول پخواني ملازمان له کاره ګوښه کړل.

کامدار خان یو سخت طبیعته افسر او غوښتل یې چې په سرکاری معاملو کې ګډوډۍ لرې کړي او اداری بدلون راولي خو په دې به یې له خانانو سره ناندرۍ وهلې او خلک به یې بندیان کړل. خانان د احتجاج په توګه انګریزانو ته ورغلل. کامدار خان له دندې ګوښه کړی شو او یو ځلې بیا پخواني کارکوونکي راغلل.

په ۱۸۲۰ م کې د ریاستي پوځ لپاره د پلو، سپارو او توپچیانو ګومارول پیل شو. نوی کسان د یو عصري پوځ په توګه تربیه شول او میاشتینۍ تنخواه هم ورته وټاکل شوه. د پوځ لپاره به اسونه او توپونه بیل اخیستل کیده او ښېنډ غږول او د پرېډ (رسم ګزشت) دود پیل شو. په مهمو ځایونو لکه خزانه، جېل، او د ښار په مهمو دروازو به پولیس ولاړ و. هرساعت به نغاره غږېده سره له دې چې هغه وخت ډېرو خلکو ساعتونه لرل.

د نواب سکندر علی خان لومړۍ واده په ۱۸۳۸ کې د عطاالله خان له لمسۍ کرامت النسا بیګم سره شوی و، په ۱۸۴۹ کې د هغې زوی غوث محمد وزېږېدو. نوموړی په ۱۸۲۰ م کې د چیچک د ناروغۍ له امله مړ شو خو دلاور خان د غوث علي خان په اړه وویل چې هغه د نواب زوی نه و. په ۱۸۲۱ کال کې یې یو بل زوی روشن علي و زیږېدو. نواب دویم واده د خپلې یوې بلې ترلې بوعلي جوېریه بیګم سره وکړ خو د هغې اولاد و نه شو.

کله چې د نواب لومړی زوی مړ شو نو د دلاورعلي خان کونډې د خپلو دووماشوم زامنو ابراهیم علي خان او عنایت علي د حق لپاره دعوه وکړه.

هغې د نواب د یوازیني زوی روشن علي خان قانونیت وننګوه ځکه د انګرېزد

قانون تر مخې مشر ځوئ به د پلار ځائ ناستې و. د دې لپاره هغې په بيلا بيلو سرکاري دفترونو کې افسرانو ته پيسې ورکړې. خو انگريز کمشنر د هغې دعوا ونه منله. دوی د رياست حاکمانو ته ليکلی سند ورکړي و چې دوی خپل ځای ناستی په خپله ټاکلی شي. روشن علی هم په ماشومتوب کی مړ شو.
د دلاور خان کونډی د خپلو ځامنو د حق لپاره بخشي الله خان ته چی ددی د ځامنو سرکاري سرپرست و ، دری زره د سرو زرو سيکی ورکړی وی چی د کمشنر په دفتر کې يوبل تن رام پرشاد ته يې د انگريز کمشنر ته د سفارش لپاره ورکولی. رام پرشاد د بخشي الله خان نه پيسې اخيستې وې

او بنائ انگريز کمشنر هم ځينی کارونه د رشوت په بدل کی کړی وی. خو د هغه بدبختي دا شوه چې انګريز کمشنر بارنيز مړ شو او د هغه پر ځای نوی کس هربرټ ايډورډ مقرر شو.
ده په انتظامي چارو کې سختي وکړه او د بډورشوتونو پلټنې يې پيل کړې. د دلاور خان کونډه هم د قانون نه خبره شوه چی هغه د ځامنو لپاره په دی ډول خپل حق نشی اخيستی نود بخشی نه يې هغه پيسې بيرته وغوښتې. رام پرشاد د سرو زرو د دريو زرو مهرونو( سيکو) په اخيستو تورن شو او دغه تورونه پرې ثابت هم شول. رام پرشاد د نواب سکندر علی هم نه خوښيدو او ايډورډزهربرټ ته مشوره ورکړه چې دی له کاره وباسي. ايډورډ هغه په شپږو کلونو بند محکوم کړواو بخشي الله خان دوه زره روپۍ جرمانه او د حکومت دعهدې نه لرې کړی شو. د دلاور خان ځامنو ابراهيم علی او عنايت علی ته د انګريزانو له لورې دنارنال کنهيالال اګروال سرپرست مقرر شو. نواب په دې خوشحاله نه و او نه يې دا غوښتل چې نورڅوک يې سرپرست وي. ده په خپله د خپل تربور د زامنو تربيه غوښته.

هند اوس پورا د انګریزانو په لاس کې واو په ۱۸۶۹ کې لارډمایوپه امبالې کې د افغانستان امیر شېرعلي خان په درناوي یو دربار را وباله چې د پنجاب ټولو مشرانو په کې ګډون وکړو. په دې دربار کې نواب سکندر علي خان ته یې د نهوتوپو د سلامۍ اعزاز ورکړ. له دې دربار نه په واپسۍ نواب سکندر علي خان ناروغه شو، او داسې ښکاریده چې د سیل (ټی. بی) په مرض اخته شوی و. ده له څو کالو راهیسې هڅه کوله چې نوابي او جاګیر سره یوځای کړي چې د خانانوزور کم کړی.

د زوی په نه لرلو ده د ابراهیم خان د فرزندۍ اراده هم کړې وه او د دلاورخان کونډې ته یې ویلي و چې دخپل زوی د فرزندۍ خواست دې انګریز ته وړاندې کړي. هغې خواست ولیکلواو نواب په خپله انګریز کمشنر ته یوړ. په دې درخواست کې د نورو خبرو سر بېره دا هم لیکلي و چې دواړه ورونه دې د زده کړې لپاره انګلستان ته واستول شي.

انګریزانو دغه درخواست رد کړوځکه د هغوئ دلیل دا و چې په اسلامي قوانینو کې دغسې فرزندي نه منل کېږي اوکه دا ومنل شي نود جمال خان د کورنۍ نورغړي به هم دعوه کوي. بله انګلستان ته د ماشومانو استول هم د اندېښنې وړ و، ځکه د نوابې کورنۍ دشمنی ډېره وه اوکه پرماشومانو څه شوې وای نوحکومت به پړ و. انګرېز نواب سکندر خان ته مشوره ورکړه چې که دی غواړي ابراهیم دې نواب شي نو پخپله دی له نوابۍ ګوښه شي خو نواب په دې خبره ډېر خپه شو. دغه قضیه څلور کاله روانه وه. نوموړي د اولاد لپاره په ۱۸۶۵ کال کې دریم ځل د الف خان نصرت خاني له لور سره واده وکړاوکال وروسته د هغې لور وزېږیدله چې یوازې لس ورځې ژوندۍ وه. د ۱۸۷۰ کلونو په لومړیو کې د نواب د کمزورۍ ځېنې نښې نښانې په ډاګه شوې، په دی کال ډیوک اف ایډنبرا (د برطانیې شهزاده) هند ته ولاړ او د ده په اعزازي میلمستیا کې نواب هم ګډون وکړ. خو ډیوک د نواب سکندر علی

خان د میلمستیا بلنه ونه منله اونواب په دې خپه او صحت یې نور هم خراب
شو. انګریزانو ورته خپل ډاکټران ور واستول خو دی روغ نه شو
په ۱۸۷۰ کې یې د بریطانیې د شهزاده مالیر کوټله ته سفر وکړو. ددی لیدنی
لپاره د انګرېزانو له خوا مالېر کوټله ته د پروګرام تفصیل ور واستول شو. چې
د هغه وخت دنوابانو په حېثیت رڼا اچوئ.
" د رېاست( مالېر کوټله) سرکاری افسران به د ښار نه څلور میله بهر د
لېفټېیننټ ګورنر ( مېلمه) هر کلی ته ورځی. نواب به د ښار نه دری میله لری د
مېلمه هر کلی کوئ او هغه ته به بوه لینده ورکوئ.. نواب به په پیل با په اس
ګاډی کی د محترم مېلمه کینې خوا ته کښېنی محترم مېلمه کله چی ښار او
بېا مېلمستون ته و رسېدونو هغه ته به د نولسو توپو په ډزو سلامی ورکړی
شی ( یعنی دوه ځلی به ورته د توپو سلامی ورکړی کېږی) کله چی دی د ګاډی
نه راښکته شی نو دده د ساتندویانو مشر به ورله خپله وسله وړاندی کوئ
نواب به د محترم مېلمه سره د هغه کېږدئ ته ورځی او بیا به تری رخصت اخلی
د یوی لنډی وقفی نه وروسته دمالیر کوټله دوه سرکاری افسران به د مېلمه د
روغتیا پوښتنی لپاره ورځی او د هغه د مېلمستیا( ډوډئ ) لپاره به ورته دوه
سوه روپئ ورکوئ. ( انګرېزانو به خپله ډوډئ پخپل اشپز پخوله)
د نواب سره لیدنه
د نواب سره به د کمشنر مرستیال او یا معین مرستیال بدرګه ځی دمېلمه د
منشی او د پولیټیکل اېجنټ ( سیاسی استاځې) له خوا به ددوئ هر کلې
کېږی، چی د ( مېلمستون) قالینی په وروستئ څنډه به ورته ولاړ وی، مېلمه به
دوه دری ګامه وړاندی راځی چی د نواب سره روغبړ ووکړی بېا به دی خپلې
کینې خوا ته په چوکئ کښېنوئ. ، سیاسی استاځې به د نواب ښې لاس ته او د
نواب خپلوان او نور افسران به د اېجنټ کینې او د حکومت سکتر( چارواکی)
او د مېلمه نوره عمله به د مېلمه کینې خوا په چوکیو کښېنی. نواب به بوه

لینده او دده خپلوان به د سرو زرو مهرونه ( سیکی) مېلمه ته وړاندی کوئ .
د لنډو خبرو نه وروسته به خلعتونه راوړل کېږی. دروند مېلمه به راپاسی او د
نواب لپاره راوړل شوی خلعت ته به لاس وروووړی، سکتر به خلعت را اخلی او
نواب به د سکتر د لاس نه دا خلعت اخلی. ابراهیم علی ، عنایت علی او غلام
علی خان به پخپل وار د مېلمه د شخصی منشی د لاس نه او د نواب افسران به
د میر منشی د لاس نه خپل خلعتونه اخلی. مېلمه به پخپل لاس نواب ته عطر
او پان وړاندی کوئ او د هغه خپلوانو او افسرانو ته دپان او د عطر ورکولو
کار به د شخصی سکتر او میر منشی له خواتر سره شی. د نواب د بېرته تگ
مراسم به هم هاغسی وی لکه چی د راتلو پر وخت یې ووېعنی نولسو توپو د
سلامئ او د ساتندویانو له خوا د وسلو وړاندی کول.
د لېفتېننټ گورنر بېرته تگ
ابراهیم علی، عنایت علی، غلام محمد او سپرنتنډنټ کنهیا لال به د مېلمه د
بدرگی لپاره کېمپ ته ورځی او پخپله نواب به د لاری په دربمه برخه کی د
هغه هرکلی کوئ.نواب به په پیل یا اس گاډی کی د مېلمه کینی خوا ته
کښېنی. په دربار کی به مېلمه د نواب ښی لاس ته، سیاسي استاځی به یې
کینې ، د نواب خپلوان به د استاځی کینی او سکتر او د مېلمه افسران به د
مېلمه ښی لاس ته کښېنی. خانان او نور افسران به دتحفی او د نذر پېسی،
او نواب به د سروارنی ( د مېلمه دسر صدقی) څلور سوه روپئ وړاندی کوئ .
د لنډو خبرو نه وروسته د مېلمه پېشکش ( تحفه) راوړل کېږی. نواب به د
مرواریدو امېل مېلمه ته په غاړه کوئ. پداسی حال کی چی مېلمه به په خپل
ځای ناست وی. نواب به مېلمه ته عطر او پان وړاندی کوئ او په دی کار به
دا مراسم پائ ته وورسېږی. د محترم مېلمه د بېرته ورتگ مراسم به هم د هر
کلی د مراسمو په شان په اړولی ترتیب وی".

د سکندر علی خان د مړینی نه څو ورځی وړاندی د ۱۸۷۱ کال د جون د میاشتې په ۲۹ نیټه خپل وصیت ولیکه. د دی وصیت له مخې ابراهیم علي خان د هغه وارث شو او دی د همدې کال د جولای په شپږمه نیټه مړ شو. د نواب په جنازه کی داسې خبرخپورشو چې ګوندی د ده د مړ وجود نه چاړواکو قیمتي ګاڼې لري کړي او د ده د کورځینې پټکي انګریزانو ته ورکړل شوی و. د ده په فرزندۍ اخیستل شوی زوی ابراهیم خان هغه وخت د څوارلسو کالو و. نواب سکندرعلی خان د خپلی نوابۍ په سر کې ډېره کمزورې پالیسي خپله کړې وه او انګریزان د ده له انتظام خوشاله نه و خو وروسته ده ډېر کارونه وکړل. په ټول ریاست کې یې د څلویښتو نه زیات ښوونځي جوړکړل چې په کې عربي، فارسي او انګلیسي ژبې زده کېدی. د مالېرې دروازې نه بهر یوه لویه ویاله بهیدله چې په باران کې به په کې اوبه را وختلې او خلکو به پرې تګ راتګ نه شو کولی، دلته یې یو پل، د مالېرکوټله اولودهیانې ترمنځ یې دیارلس میله پوخ سړک او په خپلې ماڼۍ سکندر منزل کې د دربار لپاره یوه ښکلې دیوان خانه دده د دوری مهم جوړښتونه و. د انصاف لپاره یې عامو خلکو ته محکمې اوعدالتونه او د برتانیانې ښاري انتظام یې پېل کړو.
که څه هم دا څرګنده وه چې څوارلس کلن ابراهیم علی خان به د مالېر کوټله نواب وي خو د هغه یو تربور غلام محمد په ګدۍ دعوه وکړه. ده دلیل راوړ چې د ده د پلار نیکه بهادر خان او بهیکن خان سکه ورونه و او بله دا چې فرزندي په اسلام کې نه منل کېږي. که څه هم انګریزانو د ده له دعوې سره خوا خوږې څرګنده کړه خو اصل خبره دا و چې دغلام محمد خرڅ ډېرواوخلکو ته به یې د خیرات پیسې هم ډېری ورکولې. په ده دوه نیم لکه روپۍ پور وې او د ده د مزکو په دعوو او محکموهم پیسې لګیدلې.
انګریزانو د معلوماتولپاره د کمشنر نه رپورټ وغوښت هغه ولیکل "غلام محمد ته په دې وخت کې د نوابۍ ورکول داسې دي لکه څوک چې دلیونې

پیل (هاتي) په خوله لرګی ومنډي" یعنی دی د نوابۍ ور نه و. انګریزحکومت
چی د ابراهیم علي خان د نوابۍ د تصویب لیک ورواستوونومالېر کوټله
عملاً په دوو برخو ووېشل شوه. یوخوا ځمکه وال او بله خوا د نوابي کورنۍ
خلک و چې یوازې د مالېرکوټله ښاراو کلا یې په لاس کی وه. ماشوم نواب
ابراهیم خان د انګریزانو تر څارنې لاندې په امباله کې د انګریزي او فارسي
ژبو زده کړه کوله. د ده په سرپرستانو کې قاضي احمد شاه، انګریز ویک
فیلډ، اغاصاحب او د لوهارو نواب شامل و. د هندوستان د نورو سوونو
ریاستونو په شان د مالxر کوټله نوابی هم اوس تر رسمیاتو پاته وه. عام خلک
د انګرېز رعیت واو تر ډېره حده یې په امن کی ژوند کوو.
خو په مالxرکوټله کی د نولسمی پېړۍ په وروستېو کی د سیکانو نوری وینی
توېدل لا پاته و. د سیک مذهب یو ترکاڼ چې بهایي رام سنګ نومېدو ،
دهري سنګ په نامه یې ځان ته یوه مذهبي ډله جوړه کړه، چې مرکز یې د
لودیانې د بهینz په ولسوالۍ کې و. دی ډلی د سیکانو لس واړه ګوروان منل
خو په مذهبي تبلیغ کې یې بدلونونه راوستي و. دوی د اکالي دل ( د سیکانو
یوه بله ډله) نه زیات سخت اود ګوروګوبند سنګ رېښتوني منونکي و. دوئ
به وړین کالي اغوستل او تل یې د وړی څادر له ځان نه تاو کړي و. د
ګورګوبند منونکي خپل پټکي له سر ونو نه لیرې کول اود سرغړونی لپاره یې
باید جرمانه ورکړې واې. خود بهایي رام سنګ منونکودومره سختي نه کوله.
کله چې دوی خپلې مذهبي سندرې ویېلی نو په حال به راغلل، پګړۍ به یې له
سرونو لیرې شوی او اوږدو ویښتوبه په ورته په اوږوټالئ وهلی. دوی چې کله
هم سندرې ویلې نود حلق نه به یې غږونه را ویستل چې خلکو به ورته کوکې
ویلې. ډېر زر دا ډله د کوکا په نامه یاده شوه او بهایي رام سنګ دا نوم بد و نه
ګڼلو. ده د خپلې ډلې د غړو لپاره یو مخفي ټکی(کوډ) جوړ کړی و چې بهرني
خلک پرې خبرنه و. دا کوډ دوی خپل کوروالو ته هم نه ښودلوترڅو چې په کې

شامل نه و. یوځلي بهايي رام سنګ د پټیالې په سفرتللی و. د هغه مننونکي په کوڅوکې تېریدل او خپلې مذهبي سندرې یې ویلي. دوئ ډول هم وهلو اود ډېرې جذبې نه ګډیدل. خلک به د دوی له دغه مذهبي جوش نه ډېر متاثره شول. د پټیالې مها راجا غوښتل چې د دوی مخفي ټکي پیدا کړي نوخپل دري کسان( جاسوسان) یې ورواستول چې د بهايي رام سنګ په ډله کې شامل شي. دغه کسان چې بیرته راغلل نو مهاراجا ته یې د مخفي کوډ د ځرګندولونه ډډه وکړه. اود کوکا ډلی په اړه تلوسه زیاته شوه.
د کوکا ډلی پېرویانو بهايي رام سنګ د یولسم مشر او دهغه وروربوده سنګ د خپل دولسم مشر په توګه منل خو د ګورګوبند پېرویان دوی نه مني. د دوی شمېرپه زیاتېدو شوه او د بهايي رام سنګ په ژوند کې یولکو ته ورسېدله. ده په هرو پنځلسو زرو منونکویو صوبه دارمقررکړو. په ۱۸۷۲کی دده یو صوبه دارد بهايي رام سنګ نه بغاوت وکړ،او خپلومنونکو ته یې په مسلمانو ریاستونود حملې غږ وکړو. بهايي رام سنګ د جنګ جګړی مخالف ونوسمدستي یې په دې اړه انګریز ډپټي کمشنر ته اطلاع ورکړه. هغوی ټولو ریاستونوته د ممکنه جنګ لپاره د تیار اوسېدو غږ وکړو. د صوبه دارزرواو پنځلسوسوو شاو خوا پیرویان بی له دی چی دخپل مشرنه یې اجازه اخیستی وای، د مالېرکوټله په لورې روان شول. دوی په سر کې د رام پور په کلي یرغل وکړاوکلیوالود کوتکونو په زورتېښتې ته اړ کړل. په هغه شپه د مالېر کوټله شاوخوا ورسېدل چی د کلا یوځای پکی مات شوی و. سهار وختي دوه سوه پنځوس تنه چی پلي او سپاره وپه دی مات دېوال د ښار له کوڅو او بازارونونه په تېریدو سرکاري خزانې ته ورسیدل او اصطبل ته یې ځان وررورساوه اودا روغه یې ووژلو.
اصطبل ته د دې لپاره ورتلل چې اسونه اووسلې تر لاسه کړی. په دې وخت سپېده چاودیده او د زنانه مانۍ څوکیداره چی د محل چت ته ختلی وه ویې

لیدل چې دوی سایيس او کوچوان په وهلو بوخت و. څوکیداری چیغی ناری ووهلی نود قلا او د ښار خلک را پاڅېدل.
دوی په کاڼواو خښتود یرغلگرو په وهلو لاس پوری کړو. هټیوالو هم پرې د تیږوگوزارونه وکړل. یو یې د کلا په منځ او پنځه نور یې په بازار کې ووژل شول. کوکا ډله اوس سخت وارخطا او په تیښته وه. هغه وخت د دوی مخې ته کوتوال راغی چی دوئ وواژه. د سپاره پوځ یوتن محمد خان ورپسې په ځغاسته یو څو تنه ووژل خوخپله هم ووژل شو. کله چې حمله کوونکي له ښاره ووتل نو هله د مالېر کوټله دفاعي ځواک عمل وکړ او توپونه یې په کلا ودرول او پوځ مارچ پیل کړ. د مالېرکوټله خلکو ته جوته شوه چی ددوئ د ریاست تربیه شوی پوځ د دفاع توان نه لرلو او په تېروڅو کلونوکی خپل جنگی صلاحیت د لاسه ورکړی و.
د ښار چار چاپیره د گاونډیوریاستونوپوځ په پهره ودرول شو او د باغیانو لټه پیل شوه. باغیان د شېرپور ولسوالۍ ته چې اوس د پټیالې یوه برخه وه ولاړل. هلته د سامانه نیازعلي چې د پولیسو تهانه دارود دوی هرکلی وکړ، د شپې تېرولو لپاره یې ورله یوه کوټه ورکړه د دوی وسلې په نژدې کوټې کې کېښودل شوې اوټول په دغه کوټه کې ویده شول. دوی گمان نه کاوه چې دومره میلمه پال افسر به ورسره دوکه کوي.
دوی چی کله له خوبه پاڅیدل نو وسله وال پوځ یې په سر ولاړ و. دوی یې په پړو وتړل او په یوه گاډي کې یې مالېرکوټله ته ولېږدول. په لاره یې دوی څارل چې څوک سیند یا څاه ته ټوپ و نه وهي او ځان مړ نه کړي. په مالېر کوټله کی د غلام محمد خان یو لوی کور دی بندیانو لپاره یې لنډ محالی جیل کړواو په دوی پهره ولگیده. بندیانو څه حرکت نه کاوه او په ارام د خپل راتلونکی په انتظارشول.

د لودیانې ډپټي کمشنرقانون پخپل لاس کی واخیستو ، امر یې وکړ چې ټول بندیان دې په توپونو والوزول شي. دی بندیانو په اړه نه کومه پلټنه وشوه او نه له دوئ بیان واخیستل شو. درې لوئ توپونه د مالېر کوټله د کلا جمال پوردروازې مخې ته راوړل شول.

د ۱۸۷۲ م د جون د میاشتې اتلسمه نیټه او د مازدیگر درې بجې وې چې له کوکا بندیانو نه یې دوه دوه د توپوخلوکې وتړل شول، یوې خوا ته پوځیان کتار ولاړواو بلې خواته عامو خلکو تماشا کوله. دا یو عجیبه ننداره وه د مرگ خولې ته دومره نژدې دوی د ست سرې اکال ناره وهله. په دوی کې یوکس هم په ویره نه و. په خپله به راغلل او د توپ خولې ته به ودریدل.

لومړي ځلور کسان په پړي تړل شوي و خو وروستیو کسانو په خپله د توپ خولې ته ځانونه برابرول. یوکوکه باغي هغه وخت ډپټي کمشنر ته ښکنځلې وکړې او غوښتل یې د هغه ږیرې ته لاس واچوي خود هغه ساتندوئ له خوا لاس یې په توره پری شواو سملاسي ووژل شو. په لومړي ورځ شپږدیرش بندیان په توپونو والوزل شول او پاتې نور یې په بل سحر. ټولټال اویا کوکه باغیان تربلې ورځې ووژل شول او د دوی مړي یې یوې لویې کندې ته وغورځول. له دې پیښې وروسته انگریزانوخپل کمشنراوډپټي کمشنرد خپلو عهدو(وظیفو) نه لرې کړل. ځکه د حکومت په نظر دا یو غیر قانونی عمل و. بهایي رام سنگ د ټول عمر لپاره رنگون ته ولیږدول شو. د شیرپور تهانه دار سیدنیازعلي ته لس زره روپۍ او د مجسټریټ عهده هم په انعام کې ورکړل شول. نوي کمشنر مالېرکوټله ته یو پلاوی واستوو چې د دغه ځای د چاروڅارنه دې وکړي.

ابراهیم علی خان په ۱۸۷۷ کې د ډېلي په دربار کې گډون وکړ. او بل کال ته یې د سرحد صوبې اوافغانستان د بېلا بېلو جنگونولپاره د خپلو پوځیانو یوه ډله انگریزانو ته ورکړه. د پوځې مهماتو لپاره له مالیر کوټلې نه اسونه،

قچرې اوخرې هم ورلېږل کېدې. ده د لوهارود پښتنون نواب له لور سره واده کړی واو دری زامن يې لرل چې اسحق علي خان (په انگرېزی ژبه کی دده د نوم په املا ځينو ليکوالانو دی عشق او ځينو عاشق علی بللی دی) احمدعلي خان او جعفرعلي خان نومېدل. په ۱۸۸۰ م کې د ده زوي اسحق علي خان او مېرمنه يې په يوه ناڅاپي پېښه کې مړه شول او دې پېښې د ابراهيم په ماغزو دومره اغيز وکړ چې آن ليونی شو.

د ابراهيم علی خان د څارنې لپاره يوسرپرسته ډله وټاکل شوه چې د ده زوی احمدعلي خان هم په کې شامل و. ماشوم احمد علي د خپل پلار په ژوند کې د ماليرکوټله ځينی رسمی کارونه په غاړه اخيستې و. ده د لاهورپه ايچې سن کالج کې سبق ويلو او درام پورد پښتانه نوابې کورنۍ کې يې واده کړی و.

په ماليرکوټله کې د تربورانو په دعوواود هغوی د اولادونو ترمنځ د ځمکي په سرپه جګړولوی کلي اوس په وړو وړو برخوويشل شوي و. په ۱۹۰۳ م کې احمد علي خان په رسمي توګه د رياست د نوابئ ځينی کارونه په غاړه واخيستل او په ۱۹۰۵ کال يې د لاهور په دربار کې ګډون وکړ. په ډېلي کې د انګلستان د پنځم جارج او د ده د ملکې مېرې د راتلو په وياړيودربار جوړ شوی واو په دې کې د مالېرکوټله سپين ږيرو له خپل نواب سره يوځای ګډون وکړ. اوس په لومړي ځل د دې نواب او پوځ دځېنوډلوعسکونه خپاره شول،او د شلمې پيړۍ له پيل سره د مالير کوټله پخوانی دور هم پای ته ورسيد.

## نواب او انګرېز

د شپې دولس بجې په دې لوی تالارکې انګريزانو په شوراو زوږ د نوي کال هرکلی وکړو. جامونه پورته شول او نولسمه پېړۍ رخصت شوه. د مالير کوټله

محمد احمد علی خان هم د انگریز استازې سره ولاړ دی او د دې محفل نه وروسته خپلې مانۍ ته راستون شو.
په تېرو څو کلونو کې ده له انگریزانو نه ډېرڅه زده کړي و، د اوسنۍ زمانې په تعلیم سمبال دی په انگریزۍ ژبه خبرې کولی شي. د ده جامې او د استعمال ډېرشیان د اروپا نه راتلل او دی په دې ډېرخوشحاله و چې د پرمختګ په کارونوکې اوس له ده سلا مشوره اخیستل کېده. د پټیالې نه مالېر کوټله ته د پوخ سړک د جوړېدو وروسته اوس د اورګاډي په پاټلۍ کار روان و. ددی لپاره د مرکزی حکومت د خزانې نه اته لکه روپۍ ورکړل شوي وې. د ده هیله دا وه چې که دا په نوي کال کې ترسره شي نو له خپلو سیالانو سره به سیال شي. څو میاشتې وروسته د ده ارمان پوره شو او د مالېرکوټلې خلکو د لومړي ځل لپاره اورګاډی ولید.
محمد احمد علي خان له خپلې ترلې(عنایت خان لور) سره واده کړی و،خو ده د رام پور له پښتنو سره هم نژدې اړیکې لرلې او دویمه ښځه یې له همدغې کورنۍ نه کړې وه چې له هغې یې یو زوی افتخارعلي خان زیږیدلی و. محمد احمد علي خان د خپل ناروغه پلار له لېدو وروسته سکندرمنزل نه خپلې مانۍ مبارک منزل ته راستون شو. نواب ابراهیم په لیوني نواب مشهورو.. د مالېر کوټله سرکاری کارونه احمد علي خان سرته رسوي او په ډېلي کې سږ کال د دربار بلنه ده ته راغلې ده. نوموړی له خپلو ملګرو سره کښېني او د دې دربار لپاره د مالیرکوټله لخوا د پېشکش یا نذرانې پلان جوړوي. ستونزه دا ده چې هغه وخت په ۱۹۰۳ کال کې په دی وړوکي ریاست کې نه پوځ دومره پیاړی نه و چې پریډ( رسم گذشت ) یې کړی وائ او نه هم د نواب سره خپلو تربورانو ملاتړ کوو. له دې کورنۍ سره یو څو پخواني سپین ږیري پوځیان و چې د انگریزانو له راتګ سره به یې خپل دودیز لباس او پګړۍ په سرکړی او

دوی به ورته حېرانه و. د شپې تر ناوخته سپين ږيرو پوځيانويو پلان جوړ کړ چې دوئ به په دربار کی څه کوئ.
په راتلونکو څو ورځو کې دربار ته د تللو تابيا وشوه. د نواب سامانونه لا پخوا لوديانې ته او له هغه ځايه په پوځي ټرکونوډېلي ته رسول شوي و.
انګريزان اوس له بنګاله تر پېښوره خاوره په لاس کې لرله او د هند هغه شتمني چې پرنګيانو يې افسانې اوريدلې وې اوس د دوی په لاس کې وې.
د کوه نور الماس چې نادر شاه افشار د مغل خزانې نه لوټ کړی، د احمد شاه د لمسي شاه شجاع نه د سيکانو مها راجا رنجيت سنګ کورنۍ ته رسېدلې وه ، اوس انګريزانود هغه ماشوم زوی شهزاده دليپ سنګ سره يوځای انګلستان ته وړی او هلته يې ملکی وکټوريې ته ډالۍ کړی و.
نواب چې په خپله ډېلي دربارته ور ورسېد نو په يو لوی ميدان کې يې خپله کېږدۍ ومونډله. دلته د هرې سيمې راجا او نواب لپاره بېل بېل ځايونه ټاکل شوي واو څو ورځې په ميلمستياو، مېلو او تماشو تېرېدی. له نوابانو سره ورغليو نوکرانو د هغوی اسونو او پيلانو ته بيل ځايونه جوړ شوي و.
په ټاکلې ورځ به دوی ټول د خپلې خپلې سيمې د شان او شوکت د ورښودلو لپاره د انګريزانو په وړاندې به حاضرېدل.
د مالېر کوټله واررا ورسېد نودوه کېږدۍ په مېدان کې ودرول شوی او زړو پوځيانو خپل پريډ پيل کړ. دوی د خپلې سېمې افغاني لباس اغوستی او توري يې ترملا تړلې وې. دوی له يوې کېږدۍ به وار په وار را ووتل او په بلې به ور ننوتل. حاضرينو ته ښکارېده چې په سلګونو پوځيان له خېمې نه راوځې او په بل ور د ننه کېږي. تر ډېره وخته دغه پريډ روان و اوهلته ناست مشران حيرانه و چې دغه وړوکي غوندې رياست څومره ډېرپوځ لري آن تر دې چې هلته ناست د انګريزانو استازی هم حيرانه پاتې و. د پريډ په ختمېدو ټولو لاسونه وپړکول او وروسته د انګريزانو ګورنرجنرال له محمد احمد علي نه

پوښتنه وکړه چې هغوی څومره پوځیان لري او څومره یې له ځانه سره راوستی و. محمد علي ورته وویل چې دا خو دولس کسان وچې خپل کمال یې درته وښوده. خو مالېر کوټله یو څو سوه پوځیان لري چې تېر کال له چین نه ستا سو له خدمت وروسته راستانه شوي دي.
شل کاله پخوا په دې ریاست کې نواب سره دوه سوه پلي پوځیان، وو شپېته سپاره، شپاړلس توپچي اواته مېداني توپونه و ځکه چې دوی یوازې دا نه چې په صوبه سرحد کې انګریزان بدرګه کول بلکه د هند نورو برخو ته یې هم استول. نواب ته اوس د یولسو توپود سلامۍ حق هم ورکړل شوی واواوس د مالېرکوټله په ریاست کې دوه سوه دیارلس کلي شامل و. دلته د اوسېدونکو خلکو شمېره هم په زیاتېدو وه. د سلو زرونه ډېرو خلکو اوس دغلته ژوند کاوه چې اویا فیصده یې مسلمانان و.
په ۱۹۰۵ کال کې دلته هغه مشهور بازارچې هټۍ یې په پخو خښتو او دوه پوړیزه دي جوړ شود دې په لرګینو دروازو ښکلې نقاشي وشوه او لګښت یې ښاروالۍ ورکړی و. دا موتی (ملغلرو) بازار ونومول شو او هرچا چې دلته هټۍ اخیستنه نو له ښاروالۍ سره به یې تړون لاسلیک کاوه چې تر سلو کلونو به نه د دوکان مخه بدلوي او نه به یې په جوړښت کې څه بدلون راولي. د بازار شاته پاخه کورونه او کوڅې جوړې شوی،له دې سره په مالېر کوټله کې د برېښنا مزي هم وغزیدل او خلکو د تېلو ډیوې وغورځولی.
په ۱۹۱۱ م کې نواب ابراهیم علي خان له دنیا سترګې پټې کړې او محمد احمدعلي خان په رسمي توګه نواب اعلان شو. په سکندر منزل کې ده خپل ټول خپلوان را بللي و او له دوی یې د وفادارۍ ژمنه اخیستې وه. د ده تره غلام محمد د نوابۍ په دعوه ورسره تر اوسه کینه ساتله اومحمد احمد علی هر وختې چې موقع پیدا کړله هغوی به یې سپک کړل. د ده یوه نیمګړتیا دا وه چې د خپلې کورنۍ له غړو سره یې نژدې اړیکې و نه ساتلې. هغوی ټولو ته

يې د رعايا په سترګه کتل، په تېره بيا د غلام محمد له کورنۍ سره خو يې سمه دمه دښمني پاله.

د ده پرمهال مالېرکوټله ته د انګريزانو تګ راتګ لا زيات شو. په ژمي او پسرلي کې به د ده انګريزملګري اود هغوئ کورنۍ يې د ښکاراومېلولپاره د مالېرکوټله شاوخوا ځنګلونو کې په اسونو ګرځېدل. په ۱۹۱۴ کال د لومړۍ نړيوالې جګړې پرمهال مالېرکوټله خپل ټول وسايل او لږ شميرپوځيان انګريزانو ته وسپارل اوغوښتل يې چې انګريزان له ده نه راضي اوسي.
په ۱۹۱۲ م کې ټولو خانانو په ګډه د نواب د پخلاينې لپاره ده ته نذرانه راوړه. د سکندر منزل په لوی تالار کې دوی د هغه په انتظار ناست و ، ځينې په کې ډېر سپين ږيري و.
د نواب عادت و چې هرمحفل ته به ناوخته ورتلو او دا د دې لپاره چې ټول خلک ورته درناوي لپاره ودرېږي خو په دې موقع سپين ږيرو پښتنودا فکر وکړچې احمد علي تر دوئ کشردی نوورته و نه درېدل، او يا دا کېدی شي چې دوی له وړاندې دا فيصله کړې وه چې نه به ودرېږي.
په دې کاراحمد علی سخت په قهر شو او په پايله کې د انګريزانو له خوا يې په دوی د ماليو سره سره سخته جرمانه هم ولګوله. د ماليو په زياتېدو د صدرالدين د کورنۍ په ځينو پښتنوکې نا ارامي او خپګان پيدا شو. دوی له سيکانو سره لاره جوړه کړه او غوښتل يې چې د پخوا په شان يو پوځي بغاوت وکړي خو اوس د دې وخت تېر شوی و. انګرېزانو د خپلو غښتلو چارواکو پرمټ دا سيمه په ډېرهنراداره کوله اوهيڅا دومره توان نه لرلوچې د دوئ له قانونه يې سرغړولی وائ. خلک په لومړي ځل پوه شول چې اوس به د حکومت لپاره يوازې زورنه بلکه سياست هم په کاروي

په ۱۹۱۸ م کې د لومړي جنګ په پای کې د مالېر کوټله اوسېدونکو د انګریزانو نه زیاته ارامه ساه واخیسته ځکه د دوی ځوانان د عسکری لپاره ورل کېده. خو بل کال یعني په ۱۹۱۹ م کې دافغانستان سره په دریم جنګ کې انګریزانو ته نور وسایل په کارشول. د شلمې پېړۍ په دریمې لسیزې کې دلته د هلکانو یو ښوونځی او یو کالج پرانیستل شوی و ،او دغه راز یوه ستره محکمه جوړه شوه چې په لومړي ځل خلکو په کې خپلې دعوې وړاندې کړې.

خو نواب احمدعلي خان د وخت په تېریدو ځان په شرابو کې غرقول پیل کړل. د خپل پلارابراهیم علی په شان په ده کې هم د اعصابي نارغۍ نښې نښانې پیدا شوی. د ده د کمترۍ د احساس ځېنې پېښې وې چې خلک یې شکمن کړل. په سختې ګرمۍ کې به دی د چت د پکې لاندې نه ویده کېده چې پکی به را پریوزي. که په مانۍ کې به څوک زکام شونو دا کس به یې خپلې کوټې ته نه پریښوده چې دی هم زکام نه شي. کله چې به یې په خپلې مانۍ کی شراب څښل نو یو تن ته به یې د بوتل د سرد خلاصولو وویل، هغه کس به د بوتل نه جام ډک کړاو د نواب په وړاندې به یې وڅښل. احمد علي به کله یوه ساعت یا دوه ساعته انتظارویست چې دشرابو اثر وګوري. کله چې به یې تسلي وشوه چې په شرابو کی چا زهر نه دی ګډ کړی نو بیا به یې هغه شراب وڅښل. په ډوډۍ کې به یې هم دغه احتیاط کاوه، دی به هروختې له خپلومعلوموماو نامعلومو دښمنانو په ویره و.

یو ځلې په یو دربار کې د ګډون لپاره هغه خاص اورګاډي کې د پټیالې له لارې ډېلي ته تلو. کله چې اورګاډې د پټیالې تم ځای ته ورسېد نوده ته خبر راوړوچې هلته به یو څه انتظارکوي ځکه د پټیالې د مها راجه اورګاډی هم تللو ته تیارو، چې ورپسی به د مالېر کوټله ګاډې تلو. نواب احمد علي سخت په قهر شو. ځان ورته ټیټ اوبی حېثیته ښکاره شو، خپل منشي ته یې وویل چې هر څنګه کېږي، اول به د ده ګاډی د پټیالې نه وځي، منشي لاړ اود

اورګاډي د سټېشن ماسټرسره يې خبرې وکړې، هغه ته يې ډېرې روپۍ رشوت ورکړې او شېبه وروسته د پټيالې راجه ته وويل شول چې د هغه په اورګاډي کې يوڅه تخنيکي ستونزه پيدا شوې ده، ګاډې به لږ ځنډ ېږي. په دې وخت کې د مالېرکوټله اورګاډې د سټېشن نه ډېلي په لورې روان شو. کله چې نواب احمد علي ډېلي ته ورسېد نو خبرشو چې د خرڅ ټولې پېسې په پټياله کې په رشوت لګېدلې و. بيا په ډېلي کې د ده منشي له بل چا نه پوروا خيست او د نواب د پاتې سفر خرڅ يې پورا کړو.

احمد علي به د خپل عايد نه ډېرزيات مصرف کاوه او تل به پوروړی و. په مالېرکوټله کې يوصراف مونالال نه به يې پېسې پور کړې. يوځلې نواب په ډېرې تادۍ کې د مونا لال نه پيسې واخيستې او رسېد يې ورله ورنه کړ، تجار نا کراره و او د نواب منشي ته يې وويل خبردی که سرکاري رسيد نه وي، ماته په يوه ساده کاغذ کې وليکه چې دا پېسې نواب صاحب اخيستې دي، هسې نه تربنه هېری شي.

وروسته نواب احمدعلي چې خبرشونوصراف يې را وغوښت، له ځانه سره يې کښېناوه اوورته يې وويل"کله هم داسې شوي چې موږ له تا پېسې اخيستې وې او بېرته مو نه وي درکړې؟" صراف تربنه وويريده او بخښنه يې وغوښته خونواب احمدعلي ورته بيا بيا همدا ويل چې ماته رایاد کړه چې کله موږ ستا پيسې نه وې درکړې. د نواب احمد علي خان د خودخواهۍ يو بل مثال دا وه چې کله به يو محفل ته تله نو له خپل تګ نه وړاندې به يې خپل جاسوسان هلته واستول، هغوی به ورته خبرونه راوړل چې څوک څوک را رسېدلي دي. د راجاګانو او نوابانو د محفل يو ادب دا و چې هريوميلمه چې به را ورسيد نو دا نورحاضرميلمانه به ورته د سترې مشي لپاره ودرېدل. نواب احمدعلي نه غوښتل چې نورو ته د درناوي لپاره پاڅي او يا دا چې نورخلک دې ټول ده ته ونه درېږي. کله چې به خپلو جاسوسانو ورته خبرورکړ چې ټول ميلمانه را

رسیدلي نو دی به هغه محفل ته ولاړ. یو ځلې همداسې په یو محفل کې کله
چې دی را ورسید نو ټول نوابان او راجاګان ورته د ستړي مشي لپاره ودرېدل.
نواب احمد علي خان په دې دومره خوشحاله شو چې په ډېرجوش کې خپل د
غاړې د ملغلروامیل ونیولو او په بې خبرۍ کې یې دا دومره په ګوتو کې
ومروړه چې امېل وشلید او ټولې ملغلرې دانه وانه په ځمکه پریوتې. د دې
میلمستیا کیسې تر ډېره د خلکو په خوله وې.
انګریزانو په مالېرکوټله کې د اوسپنې د ځادرونو د جوړولو دوه کارخانې
جوړې کړې، چې زیاتره به د دوی د بارکونو او پوځې ګوداMونو لپاره کارېدل،
وروسته د بایسیکل د جوړولو اود کتان د تاراوبدلو کارخانې په کې جوړې
شوې او ډېر ژر دغه وړوکی ریاست په یو صنعتي سیمې بدل شو.
په ۱۹۴۷ م کې د هند له وېش سره پنجاب هم ووېشل شو، مالېر کوټله د هند
د یوې برخې په توګه پاتې شوه. احمد علی خان اوس زوړ شوی و اود هغه
وخت د خلکو مهاجرت یې ولیدو چې په میلیونونه انسانان بی کوره او نور
ووژل شول. د سیکانوزړه تربګني یو وارې بیا ژوندۍ شوه، دوی به په بی
وسلو مهاجرو ډلو حملې کولې، سرې به یې ووژل ماشومان به یې له میندو
جلا کړل او ښځې به یې وتښتولې، خو هغوی چې په مالېر کوټله کې پناه
اخیستې وه په امن کې و. سیکانو اوس هم د خپل مذهبي مشرګوروګوبند د
هغې دوعا درناوی کاوه چې نواب شېرمحمد خان ته یې کړې وه. یوه نېکي او
د حق کلیمه څومره اغیز شیندلی شي د دې مثال په خپله دغه ریاست و چې
هغه وخت پکی سلو زرو مسلمانانو پناه اخیستې وه
محمد احمد علي د ۱۹۴۷ م د اکتوبر په اتلسمه نیټه له دنیا سترګې پټې
کړې او د ده زوی افتخارعلي خان نواب شو. خو اوس دا معلومه نه وه چې د
هند دغه ریاستونه به په کوم حال پاتې شي. د شلمې پېړۍ دویمی نیمایي په
هند کې د راجواړو او د نوابیو د خاتمې اعلان هم کاوه. ا فتخار علي خان له

۱۹۲۴ نه د مالېر کوټله د مشر وزیر په توګه ټاکل شو. د ده ژوند هم په اروپايي طرز تېر شو ،کومو خانانو چې په خپلو ځمکوژوند کاوه په دوی کې زیاتره د ويش پر وخت لاهور ته ولاړل. ځینو نورو چې لوی کورونه اونوکران یې لرل او خپل ځان یې په دې اړه ګړۍ کې ساتلی شوهم هلته پاتې شول.
افتخارعلي خان د خپلې نوابۍ د اعلان پروخت په دربارکې یوتقریروکړ، چې وروسته د ده په لیکلي تاریخ کې هم شامل شو.
په هغه وخت کې د ده تقریرنه یوازې د سیاست هغه نوې تګلاره ښايي بلکه دا هم په ګوته کوئ چې ده ځومره هڅه کړې ده چې ځان د هند حکومت وفاداره او له پاکستان نه بیل څرګند کړي. د دې نه علاوه په دې تقریر کې یوڅوحقایق ناسم وچې یو څو بیلګې یې په دې ډول دي:
" شیخ صدرالدین د کردستان اوسېدونکی و، د پارس د کسپیېن بحیرې له بندر نه یې هجرت کړی و، هلته یې د شیروان ښار جوړکړ او بیا د غزني له لارې ملتان ته ولاړاو د بهاوالدین سهروردي چېله شو".
د ایران د دربند هغه سېمه چې دی یې یادوي یو تفریحی ځای دی او د کردانو د سیمې نه ډېره لرې ده. بیا وایي" مالېر کوټله په ۱۴۴۲ کې د پنجاب خپلواکه نوابي وه" په اصل کې دا نېټه ۱۴۵۴ میلادي کال دی.
داسې ښايي چې نواب افتخارعلي خان نه غوښتل چې د پاکستان له پښتنو سره خپلې اړیکې وښايي او یا کېدی شي دا تقریر بل چا ورته لیکلی وچې هغه په خپله هم له ډېرو حقایقوخبر نه و.
نواب افتخار علي خان یوازې یو کال د مالېر کوټله د نواب په توګه پاتې شو.. ده په خپله په پنجاب کې د ټولو ریاستونو یوه اتحادیه جوړه کړه او له هند حکومت سره یې د یوځای کیدو اعلان وکړ. په نوی هند کی د نوابانو او د راجگانوځای نه و پاتی افتخارعلي خان د انګریزي تعلیم ترڅنګ اروپايي طرز ژوند هم کړی و، او ډېرو نورو ملکونو ته یې سفرونه هم کړي وخو د

نوابۍ ځېنې دود او دستور اوس هم پرځای و. نواب د خپلو خپلوانو د لېدو لپاره کله چې د دوی کور ته ورتلو نو هماغه شان دبدبه به یې ساتله چې یووخت د ده د پلاراونیکه په وخت کې ساتل کېدله.

د نواب د راتلو اعلان به له وړاندې کېدو او دهرچاکره چې به دی ورتلو هغوی به تیاري کړې وه. نواب به له خپلې ګاډۍ ښکته شو، پلی به کوڅه کې د خپلو خپلوانو په بدرګه روان واوکوربه به هم ورسره و. په کورکې به یې ښځې او بوټان د ناستې کوټې نه بهروویستل، په کوټه کې به په یومسند کښېناستو اونورخلک به ورته چارچاپېره په خپلو ځایونوناست و. بیا به د کور مشرله یوې تورې سره د نواب په لورې ولاړ، مخامخ به ورته په ګونډو کښېناستو او خپله توره به یې ورته وړاندې کړه چې د کوربه د وفادارۍ ثرګندول و. نواب به په تورې لاس کېښود، دده د یو خدمتګارسره به مخملي کڅوړه وه، د کورنوروغړواوخپلوخپلوانو به په لاسونو کې د سرو یا د سپینوزرو سیکه نیولې وه او کله چې به دا خدمتګارورته وړاندې شو نو دوی به دغه سیکه د هغه په کڅوړه کې واچوله، نواب به دا هرڅه ثارل چې څوک څومره سیکې په کڅوړه کې اچوي. دا سیکې به د نواب د سر صدقه ګڼل کېدې اوکله چې به نواب د دغه کورنه ووت نود کڅوړې ټولې پېسې به په غریبانو وویشل شوې. که په یوه کورکی نواب ته توره نه وړاندې کېدله او یا به د کڅوړې پیسې کمې وې نو نواب په دې سخت خپه واو له هغې کورنۍ سره به یې سمه دمه دښمني شوه ځکه د هغې مانا دا وه چې هغه کورنۍ ده ته پتمنه نه وه اویا یې درناوی ورته نه لرلو.

نواب افتخارعلي خان درې پښتنې میرمنې را واده کړې، لومړۍ مېرمنه یې د رام پورد نوابې کورنۍ نه وه، دویمه یې د ټونک د نواب امیرخان لور او دریمه یې د مالېر کوټله د یوې پښتنې کورنۍ جینۍ وه خو له یوې نه یې هم اولاد و نه شو. د هند حکومت د زرعی اصلاحاتو په لړ کې له ځمکه والو نه

لويي ځمکې واخيستې او په عامو خلکو يې ووېشلې ، د نوابي سيستم له ختمېدو سره ډېر خلک بې روزګاره شول .
هغه ځمکه وال چې په مالير کوټله کې پاتې شول د هغوی شمېره ډېره کمه ده،پاتې نورو پښتنو به يا مزدوري کوله او يا يې اهنګری ته لاس واچوه،دلته اوس د خلکو شمېره د سلو زرو نه ډېر ه ده چې په کې شل زره مسلمانان او ډېر يې پښتانه دي .

## هغه تللی عظمت

د ۲۰۰۲ کال د دسمبر د مياشتې دېرشمه نېټه وه د مالېر کوټله اسمان خړ و ،د دې ځای د پخواني نواب کور سکندر منزل ته مې خبر ورکړی و چې زه د ساجده بيګم ليدل غواړم. سکندر منزل په اته جريبه ځمکه کې جوړ شوی دی او هر نواب په خپل وخت او په خپله سليقه دا ښکلی کړی او يا يې په کې ترميم کړی دی .
د مانۍ ودانې د وړو لهوری خښتو جوړه ده ، د دې د پاسه سيمټي پلستر او ورباندې ژيړ رنګ د شلمې پيړۍ دی. د دې د لوی دروازې نه د ننه پراخ انګړ د ځمکې نه لږ لوړ جوړ دی چې چت نه لري او ښايي په خاصو موقعو او يا په اوړي کې ورباندې بې شمېره خلک کښېناستل او د حجرې کار يې ورکاوه. د دې انګړ بل سرکې يوه بله لرګينه دروازه د ننه وړوکي دالان کې خلاصېږي چې ښايي د بوټانو او يا د څپليو د ويستلو ځای وو ،خو دومره لوی و چې يو مېز او يوه لويه هېنداره پکې په ځای شوې و.
د مېز د پاسه د هند د پخوانۍ لومړۍ وزېراعظمې اندراګاندهي عکس ايښی و ، په يو بل عکس کې د راجيوګاندهي سره يوه مېرمنه ښکاريده چې زما په

اندازه د نواب افتخار وروستۍ مېرمنه ساجده بیگم وه. د دالان بل سرته د لرگي په دروازه شیشې لگیدلي وې ، یوې خدمتگارې دا دروازه راته پرانیستله او د ننه یې د راتلو اشاره راته وکړله، ما غوښتل چې بوټان وباسم خو د ننه مې چې په قالین دوړې او خاورې ولیدلی نو اراده مې بدله کړله.
دا لوی هال (تالار) چې یو وخت د مالیرکوټله نوابانو یکی د خپلو خپلوانو سره لیدل او مهمې جنگي فیصلې به یې په کې کولې دومره لوی نه و. زما په اندازه دبرش مېتره اوږد او لس مېتره پلن و ،د دې تالار ټول فرش په زړو قیمتي قالینو پټ و چې رنگونه یې خاوری شوی و . له دیوالونو ژېړ پلستر په رانړیدو و ، د کړکیو ځینې شیشې ماتې او نور یې په ښیرو پټې وې .
داسې ښکاریده لکه چې دلته چا په میاشتو هم صفایي نه کوله.
د دیوالونو سره په قطار د لرگیو ښکلي نقشونه لرونکی دکږو پښو (پایو) انگریزي طرز قدیمي صوفې وې چې ورباندې مخملي گدۍ ایښې وې . په دیوالونو د پخوانیو نوابانو رنگین انځورونه ځوړند و چې د نواب احمد علی عکس په کې پاک او نوی برېښېدوخو د دیوال په بل سر کې تر ټولو لوی او رنگین انځور د نواب سکندر علي خان وچې لباس یې حیرانونکی و. ده د گیډې پرتوگ د پاسه چپنه اغوستې وه او داسې ښکاریده چې ډېر لوی اوغټ سړی وي خو د ده په اړه په کتابونو کې لیکل شوي و چې نوموړی به ډېر ساده لباس اغوستو او په پښو به گرځېدو.
یو څو شېبې وروسته ساجده بیگم د تالار د بل سر د دروازې نه را دننه شوه، ښنه یې وغوښته چې د دې زکام و او طبیعت یې ښه نه و. ما سره یې په وریږ تندي روغبړ وکړ ، کښېناسته او ډېره په مینه یې راسره خبرې پیل کړې.
د دې په نیلا سترگو کې د زماني غمونه پټ و خو اوس هم ښه ښایسته وه، لوړه دنگه او د مخ په گلابي پوټکی یې ډېرې گونځې نه وې، اواز یې دروند

و. ما د غږ د ثبت لپاره مایکروفون او ټېپ را وویستل نو دی راته په خندا وویل ته څه پوښتنې لرې؟
ما ورته وویل، غواړم چې د نواب افتخار او وروستیو حالاتو په اړه درسره خبرې وکړم، خو هغې د پخوانیو حالاتو په اړه یا خو معلومات نه لرل او یا یې هم نه غوښتل چې په دې اړه څه ووايي د نواب افتخار په ذکر هم خاموشه شوه.
ما د دې نه د شخصي ژوند په اړه پوښتنې وکړې خو دې په ډېر احتیاط خبرې کولې او معلومات یې نه راکول.
د نوابې کورنۍ د مېرمنو په اړه یې وویل چې هغه وخت ډېره سخته پرده کېدله، د هېڅا جرات نه و چې له اجازې پرته د ښځو خونو ته ورشي، هغه خدمتګاراني چې د کور د ننه به یې کار کاوو دوی هم یوازې د لوی تالار د دروازو د شانه له سړیو سره خبرې کولی شوې.
ښځو ته د سرکاري سفرونو اجازه نه وه، او که مېرمنې کله په ځانګړې ګاډي کې له کوره بهر وتلې نو ددی چارچاپېره به پردې لګیدلې وې.
کله چې به کومه ښځه ناروغه او مجبوره شوه چې حکیم ورته را وغواړي نو حکیم به د پردې د شانه نه یوازې د هغې د مرض د علایمو په اړه پوښتنې کولې. ډېر سخت مرض د تشخیص لپاره به یې کله کله د نبض کتلو اجازه اخیسته. په مالیر کوټله کې پښتانه د یوبل سره د خپلوۍ له کبله تګ راتګ کوي. دوی چې به کله د خپلو خپلوانو کره ورتلې. د نوابې کورنۍ مېرمنې به د چا کورکوځې ته ورسېدې او ګاډی به وړاندې نه شو تللې نو د کوځې دواړو غاړو ته به یې څادرونه (پردې)ونیول، ښځې به د ګاډی نه ښکته شوې نو دوی به د څادرونو په منځ کې د هغه کور دروازې ته ولاړې.
ساجده بیګم راته وویل ماچرې بورقه (بقره) نه ده په سرکړې ځکه چې ضرورت یې نه وپېښ شوی د خپل لباس په اړه یې راته وویل" مونږ زیاتره کمیس پرتوګ اغوستل، ساړهي زمونږ لپاره پردی لباس و ،کله کله به مو په خاصو موقعو

تنگه پاجامه (چوړي داریا چین دار) او اوږد پیشواز( کوچاني ډوله کمیس) اغوستل. په پنجاب کې د سرو زرو د گاڼو ډېر رواج دی نو د هرې یوې مېرمنې به ښه درانه بنگړي، کړې او نور کالي و.
ساجده بیگم د نولس سوه اویایمې په لسېزه کې د کانگرس گوند لخوا په ټاکنو کې برخه اخیستې او د مالېر کوټله لپاره د پارلیمان څوکۍ یې گټلې وه. هغې نه مې پوښتنه وکړه چې په ژوند کې یې تر ټولو گرانه فیصله څه وه نو مسکۍ شوه او وې ویل ،کله چې مې په سیاسي ډگر کې قدم کېښود نوراته جوته شوه چې د پردې تر شاکارونه ناشونی دی، زما لپاره تر ټولو گران کار له پردې بهر را وتل و. زما دکورنۍ ځېنې غړي په دې خوشحاله نه و خونواب افتخارعلي خان یو روڼ اندی واو ما سره یې پوره مرسته وکړه.
ما ترې د نوابې کورنۍ د قیمتي او زاړه اثارو په اړه پوښتنه وکړه نو هغه یو څه ناارامه شوه او وې ویل" هغه څه چې ما ته را رسېدلي اوس هم راسره دی،د هغې نه وړاندې د شیانو پوښتنه دې له هم هغو خلکو وشي.
ساجدې بیگم په کنایه کې راته وویل چې په کورنۍ کې یې د وراثت په اړه یو څه لانجه روانه ده او خبره تر محکمې رسېدلې ده گوره چې څه کېږي. ورته مې وویل چې ولې دا دومره ښایسته او ښکلې ماڼۍ حکومت ته نه ورکوي چې هغوی یې میوزیم کړی اویا پکې تعلیمي اداره جوړه شي. هغې راته وویل چې اوس یې په یوه برخه کې پخپله د جینکو یو ښوونځی پرانیستی (یعني د فیس په بدل تعلیم) او دا چې د دې ماڼۍ نه د میوزیم جوړولو په اړه به غور وکړي.
د هغې نه می اجازه واخیسته چې د دې ماڼۍ د هندارو خونه ( شیش محل ) وگورم. چې د تالار نه بهر ښې لاس ته په بره پوړ کې جوړ و. دلته د تالار چت هم لوړ خو ساده و او د دې د یوې لویې دروازې نه هغه کوټې ته لاره وه چې دوی ورته شیش محل وایي،دلته په چتونو او دیوالونو په زرگونو وړې او

لويي هېنداري لګېدلي وي، کوټه د يوې خېمې په شکل وه او د دې په نريو ستنو هم وړې رنګېنې شيشې وې. ما چې د هرې خوا نه هڅه وکړه ، د دې کوټې ښايست مې په کېمره کې خوندي نه کړی شو ، د هرې خوا نه د کېمرې د فلېش رڼا د بوې يا بلې هېنداري نه بهرته راتمبېده او تصوير يې خرابوو. هغه شيشې چې د دې د چت نه رالوېدلي وې د پېنولاندې راتلې، په ځمکه يو څادر غوړېدلی و چې شيشې د چا پښې ژوبل نه کړي . په دې ټوله کوټه کې مېز څوکۍ نه و.

د هندارو کوټه قريبا دولس مېټره اوږده او قريبآ شپږ مېټره پلنه وه، او د دې په يو سرکې محراب جوړ و ، په دوو ديوالونويې په فريمونو کې زاړه او د انګريزانو د وخت عسکونه ځوړند و چې په کې د مالير کوټله بيلابيل مشران د خپلو بهرنيو ملګرو سره ناست ښکاريدل.. د لرګي په يوه فريم کې ليکلی فرمان هم ځوړند و خو دومره خاورې او دوړې پرې پرتې وې چې هېڅ نه لوستل کېده.

د دې کوټې د ستنو شا ته لوي کړکۍ يوې ګيلرۍ ته خلاصېدې چې د هغې يوې خوا نه د ماڼۍ انګړ ښکارېده. يو بل محراب نه ښکته د دربار هال ښکارېدوچې اوس تش پروت و ، نه يې په فرش قالينې وې او نه يې په کړکيو وربښمنې پردې.. د خښتو په ديوالونو د جولا ځالې ځړېدې. د شيش محل د کوټې په ورستي سر کې د شيشو او لرګيو يو شوکېس(د شيشې او لرګې وړوکی صندوق ډوله مېز) ايښی و ،هاغسې لکه چې په موزيمونو کې وي او زاړه توکي پکې ايښودل کېږي. زه نژدې ورغلمه چې ووينم ګوندې په کې کوم تاريخي يا لرغوني اثار ايښي وي. ځکه دې شوکېس ته يو جرنده(قفل) هم ځوړندو ، نو تلوسه مې زياته شوه خو هلته د شلمې پېړۍ د پروړو جوړ شوی د اروپايي ښځو د سر خولۍ(هېټ) ايښې وه. د چت نه يوه وړه شيشه زما مخې ته را پريوته نو پام مې شو چې دا خونه په رژېدو وه.

د سکندر منزل د دویم پوړ نه مې چارچاپېره ولیدل، د دې د لویې دروازې نه بهر د دوکانونو د جوړولو کار کېدو، هغه لارې چې یو وخت په کې د نوابانو ګاډئ او موټرې تلې راتلې اوس سیمټو، خښتو او اوسپنې بندې کړې وی. د ماڼئ بلې خوا ته د مېښو او د غواګانو غوجلې وې. د اتلسمې پېړۍ د دې ودانۍ د لویو دیوالونو په سوریوکې ابابیل او د مرغیو ځالې جوړې وې، په یوې برنډې کې د پیازو پوستکې هوا بادول، خدای خبر د کومې مېلمستیا نه پاتې و.

ښکته د ساجدې بیګم سره مې نوری خبری وکړی. د شیش محل په اړه یې وویل زه خپل زیار باسم اوسو چ کووم چې د دی لپاره د لکهنو نه کارګران را وغواړم چې دا بېرته جوړکړي. د دی کورنۍ د کتابونو او د پخوانیو اسنادو په اړه پوښتنه می تری وکړه نو هغې ډېر په خپګان وویل " څه موده وړاندې زمونږ د ماڼۍ د یوې کوټې چت په باران او سېلۍ کې راپریوت او زیاتره کتابونه اوبو ووهل، هغه څه چې ترې پاتې شول مونږ سره دي خو نور ضایع شول.. په ساجده بیګم کې مې د ژوند هېڅ هیله نه لیده ، داسې ښکاریدله لکه چې ژوند ورته یو پېټی شوی وي.

د نواب افتخار لومړئ میرمنه د ټونک د نواب خور چې زما د تګ پر وخت د اتیاوو کلونو وه، په یوې بلی ماڼۍ مبارک منزل کې اوسېده.

مبارک منزل ته تللې ښکلې لاره په شنو ونو او ځنګلونو پټه وه،د ژېړ رنګ دا ودانۍ د لویو لویو باغونو په منځ کې جوړه ده، ماڼۍ ویجاړه ، مارغانو په کې ځالې جوړې کړې او هیڅوک په کې نه ښکارېدل.

د لویې دروازې سره جوخت یو کټ پروت او یو زوړ سړی چې ځان یې په ګرانه خوځولی شو، یوازینی څوکیدار و. هغه راته وویل چې مشره نوابه څو کالو راهیسی ناروغه ده او په مالیر کوټله کې د جوړو شویو نویو بنګلو(ودانیو)

کی په یوه کې اوسېږي خو د نوی بنگلی یوی نرسې راته وویل چې نوابه ډېره کمزورې ده اود هیڅچا سره لیدل نه غواړي .

درې کاله پخوا په فارسي لیکل شوی یو زوړ کتاب وموندل شو. زما نیکه د مالېر کوټله د وروستي نواب افتخار علی خان تروختته د ماڼۍ د کتابونو او لیکلو اسنادو د ساتونکي په توگه کار کاوه اود هغه له مړینې سره سم له ماڼۍ سره زموږ اړیکه پرې شوی وه. . اوس چې مې دا کتاب وموند نو یوه تلوسه مې پیدا شوه چې په دې کې به څه لیکلي وي. زما اردو ژبه زده ده او دومره مې ولوستلی شول چې دا کتاب دوه نیم سوه کاله پخوا په لاس لیکل شوی او د مالېرکوټله ځینې پېښې په کې ثبت دي . د کتاب په وروستیو پاڼو کې یې تاویزونه هم لیکلي واو د دې لپاره چې کتاب یو څوک ولولي او یایې وژباړي زه د مالېرکوټله د نواب شېر محمد خان د علمي څېړنو مرکز ته ولاړم . د دې ادارې مشر زینت الله خان په فارسي ژبه پوهېږي خو ده راته وویل "زه وخت نه لرم" بیا مې د ښار مفتي فضل الرحمن عثماني ته دا کتاب ورکړو او ورته مې وویل چې زه به کله ناکله درځم چې په دې کتاب ځان پوه کړم او را ویې ژباړم. خو مفتي صاحب هم ډېر مصروفه سړی دی،شپږمیاشتې یې دا کتاب له ځانه سره ایښی و ، بیا چې ورپسې ولاړم نو کتاب د ده په کتابتون کې بی درکه شوی و. ما دمفتي صاحب نه گیله وکړه نو دی نا راضه شو او راته یې وویل "وگوره که په کتابتون کې یې لټولی شي ویې لټوه او واخله".

ما په خپله د هغه په کتابونو کې لټون پیل کړ او اخر مې کتاب پیدا او کور ته راوړ. یوه ورځ مې دا کیسه یوځای کې وکړه، هلته د کالې خان په نامه یو تن راته وویل چې نیکه مې په فارسي ژبه پوهېږي او غوښتنه یې وکړه چې کتاب ورکړم چې خپل نیکه ته یې یوسي، اوس کتاب له هغه سره دی ، یوکال کېږي چا راته وویل چې هغه داکتاب بل چاته ورکړی دی.

دا ټوله کیسه په مالېر کوټله کې راته غضنفر علی خان وکړه چې له نوابي کورنۍ سره خپلولي لري . د هغه د مېلمنو په کوټه کې په دیوال یو زوړ ډال ځوړند و ، ماترې پوښتنه وکړه چې دا د کوم وخت دی او توره به هم ورسره وي اوکه څنګه، هغه څه شوه؟ غضنفر علي خان راته وویل چې "د دې ډال په شان یو بل هم و او توره هم ورسره وه، زما خورئ چې په پاکستان کې اوسېږي یو ځل په چکر مالېر کوټله ته راغلی و د هغه دا توره او ډال ډېر خوښ شول ، راته یې وویل چې د خپلې کورنۍ یوه ننبه له ځانه سره وړل غواړي . موږ هم ورته دا دواړه ډالۍ کړل او فکر مې وکړ چې له دې ځایه به هلته دا ډېر خوندي وي . د هند او پاکستان ترمنځ ناندریو او د جګړې له امله مسلمانانو دغلته په خپلو کورونوکې د دا ډول شیانو ایښودل بند کړي دي، په مونږ شک کېږي ، زموږ ډېرو خپلوانو پخوانۍ تورې را ټولې کړې او په یوه څاه کې وغورځولې چې ځان ترېنه خلاص کړي.. زموږ په کور کې دا توره او ډال ډېر قیمتي و او د نواب له خوا زموږ نیکه ته د هغه د خدمتونو په بدل کې ورکړل شوي و".

کله چې غضنفر علي خان په ۱۹۹۱ کال کې د خپلې خور د لیدو لپاره پاکستان ته ولاړ او د تورې پوښتنه یې وکړه نو خورئ ورته وویل "ماهغه توره په کراچي کې د فرانسې سفیر ته ډالۍ کړله او هغه دومره خوشحاله شوچې ماته یې یو سند راکړوچې په کې زما نوم لیکلی او دا چې زه د فرانسې ښه ملګری یم". غضنفر علي خان وویل زما خورئ د هغې موقع یو عکس را استولی چې د فرانسې سفیر ته توره ډالۍ کوي..

ما د غضنفرنه پوښتنه وکړه چې ایا دی هم دغه کار یو ویاړګڼي؟ نوپه دې خبره د هغه سترګې له اوښکو ډکې شوی . ما تری د پخوانیو عکسونو پوښتنه وکړه چې څه یې کړل؟ هغه خپلې مېرمنې نصرت جهان ته وکتل او راته یې وویل" دوی هغه زاړه عکسونه کوم ګودام کې اچولي دي" بیا دی ولاړ او

ځينې تور اوسپين عکسونه چې په فريمونوکې بند و راوړل او دوړې او خاورې يې ترې و څنډلې .
ما د ناستي د دې کوټې ديوال ته کتل چې پرې له يو سر نه واخلي تر بل پورې د هالېنډ د لاله ګلانو يو لوی پوسټر لګيدلی و ، دا ډول پوسټرونه په بازار کې شاوخوا پنځوس روپۍ قيمت لري.. نصرت جهان ته مې وويل" فکر نه کوی چې دا عکسونه له هغه پوسټر نه زيات ارزښت لري؟" زما په خبرو هغی ته يو څه تاو ورغی او راته يې وويل نن سبا خلک رنګه تصويرونه خوښوي.". ما ورته وويل" په لندن کې داسې عکسونه می په انټيک پلورونکو په نيلامۍ کې ليدلي چې قيمت يې دسلو ډالرو نه کم نه وی، دوی دواړو يوه شېبه داسې راته کتل ته به وائ زه ورسره ټوکې کووم.
اخر مې ورته وويل "تاسو خو هسې هم دا عسکونه په ردي کې غورځولي دي ، که غواړئ زه به دا عکسونه درنه په بيه واخلم" ،نصرت جهان ژر پاڅيده او عکسونه يې ځای پر ځای کړل. غضنفر وويل" دا خو زموږ د خاندان يو ميراث دی" ما ورته وويل نو د پلار نيکونو ميراث کوم ځای ساتل پکار دی؟ زما هيڅ اراده نه وه چې دا عکسونه يا بل څه ورنه په بيه واخلم خوددی لپاره چې دوی د عکسونو په ارزښت لږ پوه شي نو دا خبره مې وکړه.
غضنفر راته وويل "زما د نيکه ټول کتابونه او کاغذونه موږ په ګودام کې اچولي دي،اوس چې تا راته وويل نو زه به يې په يوې سمې کوټې کې خوندي کړم او هغه زوړ تاريخ خو هرومرو پيدا کووم".هغه به د وروستي نواب افتخار علی خان سره ډېر ليدل او راته يې وويل کله چې هغه د مالېر کوټله تاريخ ليکلو نو يوه ورځ يې زه را وبللم او د کاغذونو يوه ګېډۍ يې راته راکړه، په دې کې د مغل پاچاهانو او نورو واکدارانو له لوري په فارسي ژبه ليکل شوي فرمانونه او نور بی شمېره ليکونه و ،ښايې د افغان واکمنو ليکونه هم پکی و

په خپله د مالېر کوټله دنوابانو د لاس لیکلي شیان هم و، ما د ځېنو لیکونو نېټې ورته ولوستلې، وروسته معلومه نه شوه چې دا کاغذونه څه شول.
څو کاله کېږي چې د ماڼۍ د کوټې یو چت را پریوتی او ځیني قیمتی کتابونه په کې ضایع شول، ورسته ساجده بیگم ډېرکتابونه او کاغذونه په کباړي کې خرڅ کړل، زه چې خبرېدم هر څه د زوړ کاغذ په بیه خرڅ شوي و او یوازې هماغه قلمي زړه نسخه چې په فارسي لیکل شوې ده په مشکله مې له چانه واخیسته او اوس رانه بیا ورکه ده"
د مالېر کوټله محمد اقبال خان د خپل نوم سره شېرواني لقب کاروي او وایي چې د ده نیکه په پښتو پوهیدو ځکه دی به سرحد صوبې ته تلوراتلو او د بوډاگانو په هغه ډله کې شامل و چې په ۱۹۰۳ کې یې په ډېلي دربار کې گډون کړی و. دی د نواب یو صاحب منصب و او کار یې د نواب د ورځینو چارو سمبالول و د ده عهده سردار ډیوړهي( د میلمه پالو سردار) وه او ریاست ته د راتلونکو مېلمنو د هرکلي نه را واخله تر نواب د سرکاري سفرونو او د پروټوکول کارونه به یې سرته رسول.
د اقبال خان په کورکی د ناستې په کوټه کې په دیوال دده د نیکه د عسکونو سره یو ډال هم ځوړند و چې د گېنډې(خړتمي ځناور) د څرمنې نه جوړ و، خو د نیکه د تورې درک یې نه لگېده. اقبال خان د اسونو کاروبار کوي او په مالیر کوټله کې یې خلک د لمبردار په نوم پېژني. دی د پنجاب د بیلابیلو برخو نه اسونه راوړي ، د دو ی خسمانه کو ي او بیا یې په لوړه بیعه خرڅوي.. د ده کورنۍ به اسونه ساتل او ریاست ته به یې د جنگ او سفر لپاره ورکول خو داسې چې اوس یې په بازار کې خرڅوئ، دا کار هیڅا نه و کړی، اقبال خان وایي دوی د لودیانو سره نژدې اړیکې ځکه ساتي چې د ودونو لپاره د پښتنو کورنۍ غوره گڼي، هغه وویل د پنجاب د وېش سره د مالېر کوټله پښتنو ته سخت تاوان رسېدلی دی.. د اقبال خان دویم ورور محمد خان ځمکې ساتي

او د کروندگرو سره لگیا وي، کشر ورور اجمل خان یې په پوهنتون کی سبق ویېلو.. دده د معلوماتو له مخی درابڼ د پاکستان د اټک په سیمه کې دی او دغلته د دوئ د مشرانونه د یو صوفي پیر زیارت اوس هم شته دی.. هغه ته د پیر نوم نه و معلوم خو وایي چې زیارت ته یې د اوسپنې قفل (جرنده) لگیدلی دی،د ده په وېناکله چې د شېرواني کورنۍ غړي زیارت ته نژدې شي نو دا جرنده په خپله خلاصه شي. د زیارت مخې ته د یوې زړې او پخوانۍ ونې تنه هم پرته ده او مراد غوښتونکي دلته یو مېخ ټک وهي .

د مالېر کوټله د نوابانوسره نږدې اړیکی لرونکی یوه بله کورنۍ د اخلاق خان ده چې د شېرواني لقب کاروئ. دی د محکمې وکیل دی او ځینې پخواني روایات یې لا اوس هم ساتلي دي . په ماشومتوب کې به دی سکندر منزل او مبارک منزل ته ډېر تلو، او د نوابي کورنۍ د حالاتو نه هم زیات باخبره و. د نواب احمد علي د ژوند په اړه یې د مشرانو نه اورېدلي و چې هغه به ډېر شراب څښل، د ماښام سره به دی د سکندر منزل په بره دالان کې کښېناستو، یو نژدې ملگری به ورسره و او جامونه به یې کړنگول.

اخلاق احمد شېرواني راته د نوابانو د لباس په اړه وویل چې دوی به تنگې پایجامې، هغه چې ډېر چین لري او د هغې د پاسه شېرواني ( د بندي غاړې اوږد کوټ) اغوستو. د ده په فکر د دې کوټ نوم شېرواني د مالیر کوټله د نوابانو لخوا ورته ورکړل شوی دی . نوابانو په سر پټکی تړلو او د هغه شمله به لوړه او ډېر ولونه یې لرل،د پټکی یوه پله به شاته تر ملا ځړیدله، د دې پټکی د پاسه به د سرو او د قیمتي ډبرو ښایسته جیغه(بروچ) لگیدلې و.

د دوی څپلۍ(پڼې) به افغاني وې او اکثر به وربانديې د تیلې کار شوی و. دا څپلۍ په مالېر کوټله کې د پټهاني جوتي( پښتنو پڼې) په نوم شهرت لري او اوس یې هم خلک په خاصو موقعو او ودونو کې په پښو کوي.. د سیمې پښتنانه خمیره ډوډۍ او غوښه ډېره خوري، دوی یو ډول ډوډۍ پخوئ چې

غټه پېړه یا زواله اخلي لړ یې په تبې ړدي چې کلکه شي بیا یې په سرو سکارو ړدي چې غټه ډبله ډودۍ ترې پخه شي، دوی روغني ډوډۍ هم خوري او غوښه زیاتره په ښورا کې پخوي.

د اخلاق احمد په کور کې یوه پخوانۍ توره(دده په وېناسل کاله زړه) تراوسه د شاوخوا خلک د ودونو لپاره ترې وړي د واده شاه ځلمی ته یې په ملا ورتړي.
هغه وویل د واده شاه ځلمي ته د تورې ورکول یو ویاړ ګڼل کېږي. بیا یې هغه توره را وغوښته چې ماته یې راښکاره کړي. توره د نسواري مخمل په تېکی کې بنده وه او په لاستی یې طلائ کار شوې و، زما په غوښتنه دوی توره د تېکی نه د راویستلو هڅه وکړه، خو داسې معلومیده چې دا چېري هم له تېکی نه وه را ویستل شوې،د اخلاق احمد یو ځلمي زوی په ډېرو زورونو سره اخردا له تېکی را وویسته او زما د توقع سره سم یوه زړه او زنګ وهلې توره ترې را ووته .

د مالېر کوټله یو بل اوسېدونکی نصرت اکرام خان د هند د پارلمان لپاره دوه ځلي انتخاب شوی دی او د کانګرس په حکومت (۱۹۹۷-۲۰۰۰)کې د لوبو وزریر هم و. نصرت اکرام د شېرواني لقب د خپل نوم سره نه لیکي او د پښتو ژبې په اړه یې راته وویل چې دمالېرکوټله پښتنو له پیل نه پښتوژبه نه ویله ځکه چې دوی په پنجاب کې ژوند کوو. دوی چېرې هم د خپلې ژبې او کلتور تبلیغ نه دی کړی که څه هم ځایي خلکو د دوی ډېر رواجونه خپل کړي دي ،د بیلګي په توګه پښتنې ښځې تل ستر او پرده کوي، په ځان څادر او یا بورقه اچوي، له دوی سره په سیالۍ د پنجاب ډېرو ښځو د څادرونو په سرول پیل کړل. د شېخ صدرالدین او د بهلول لودهی د کیسې په وېپلو دده سترګی له اوښکو ډکی شوی.

ساجده بیګم په ۲۰۰۵ کال کې مړه شوه او دهغې د مړینې سره د مالېر کوټله د نوابې کورنۍ له ځینو نورو رازونو پرده پورته شوه. نواب افتخار خان په

۱۹۸۰م کې ساجدې بیگم ته طلاق ورکړی وا و وروسته هغې د انور خان نومي یو کس سره واده وکړوخو د افتخار له مړینې وروسته ساجدې بیگم یو واري بیا په سکندر منزل کې ژوند پیل کړ اوځینو خلکو پری شک کوو چی د نوابې کورنۍ شیان یې په یوه او بل پلمه خرڅول. د هغې د مړینې نه ورسته یو تن چی ساجد علي خان نومېدو ماڼۍ کی کښېناستو،ده دعوه وکړه چې د ساجدې بیگم لېورزوی دی، او په ماشوموالي کې هغې په فرزندي نیولی و. کله چې ساجد علي خان د خپلی کډی سره سکندر منزل کې داخل شو نو ځایي پولیس ورغلل ، ټول یې له دغه ځایه وشړل او کور یې بند کړو .
د نواب افتخارعلي خان په وصیت کې چې د ۱۹۷۱ م د دسمبر په میاشت کې لیکل شوی و ، دا ماڼۍ یو وقف بورډ ته سپارل شوې وه او خپل تر مرگه ساجده بیگم یې ددی مختاره ټاکلی وه چې هغه به د خپل مرگ نه وړاندې ماڼۍوقف بورډ ته سپاري. خو د طلاق نه وروسته افتخار علي خان خپل وصیت بدل کړو او د روڼ اندو مسلمانانو یوه دیارلس کسیزه کمېشن یې جوړ کړ چې د دې ماڼۍ څارنه وکړي خو د نواب له مړینې وروسته د وقف د دیارلسو کسانو له خوا هېڅ داسې څه عمل و نه شو چې د ماڼۍ څارنه پری شوی وای. په مالېر کوټله کې عامو خلکو وییل چې ساجده بیگم د کانگرس له غړو سره اړیکې لري او خلک تر ې وېرېږي اوبله دا په خپله هم د وقف بورډ مشره وه نو ځکه چا څه نشوای کولی.
په لاهور کې یو تن فیاض احمد خان چې د ساجده بیگم خپل سکه ورور و هم په دې ماڼۍ دعوه وکړه. د هغی یو لیکلی وصیت چې د مرگ نه یې نهه ورځې وړاندې لیکلې او دستخط کړی و را برسېره شوی دی، او په دې کې وایي چې د دې د مړېنې نه وروسته د دې ټول جایدادبه د دې ورور فیاض احمدخان لاس ته ورځي. ځایي پولیسو د ساجدې سلطان د لاس لیکلی یو قانونی سند ترلاسه کړی دی چې په کې لیکل شوي چې د هغې د ناروغۍ پر مهال د هغې

خپلوانو په زوره ترې په ځینو کاغذونو دستخط اخیستی وچې کېدی شي
ځینې په کې د جایداد کاغذونه وي. د مالیر کوټله په مزکو یوه بله دعوه د
کوروایې د نواب مېرمنی سرور جهان بیگم هم وکړه چې د نواب افتخار علی
خان وربېره وه
هغه وخت یعنې په ۲۰۰۲ عیسوي کال په مالېر کوټله کې ما د ساجده بیگم
په اړه څه ښه خبره نه وه اورېدلې. سره له دې چې په حکومت کې پاته شوی وه
ډېره لوستې مېرمنه نه وه. ځینو خلکو ویېل چې هغې په چندي گړه ( دپنجاب
ایالتي مرکز) کی ځان له بنگله جوړه کړې وه، له دې مانۍ ټول قیمتي او
ښایسته شیان یې هلته وړل او ورو ورو دکورنۍ د ځمکو او نورو شیانو په
خرڅولو لاس پورې کړی و اود مالېر کوټله د تاریخي شتمني د ژغورلو لپاره
یې لکه د نورو ریاستونواو یا له حکومت نه مرسته نه وه اخیستې.
د مالیر کوټله د هغې زړې کلا یو څو دیواله اوس پاتي و چې د شیخ
صدرالدین کړوسي د کوټله په نوم جوړه کړې وه. په کومو ځایونو کې چې د
دېوال اثار پاتې دي هلته د دې لوړوالی شل فټه قریباً اووه میټره او پلن والی
درې فټه یو میټر ښکاریدو چې د خطر پر وخت به پرې ساتونکي له غشو او
لیندو او یا د ټوپکو سره ولاړ و. په دغه کلا کې اوس لارې او هټۍ جوړې دي.
د ښار مرکزي ځای د شیخ صدرالدین صدرجهان زیارت دی چې له هرې خوا نه
ورته خلک ځي. له زیارت سره جوخته کوڅه محلت د حضرت شیخ یا شېخ
حېدرمحلت نومېږي. د دې زیارت نه چارچاپېره د پخوانیو لویو تیږو دیوال
جوړ دی. یوه نوبت خانه( نقارخانه) هم په کې شته چې د شیخ صدرالدین د
کالنۍ عرس پر مهال په کې نغاره غږول کېږي.
ځایي خلک په دې باور دي چې دا دیوال پیریانو په یوه شپه کې جوړ کړی دی.
زیارت ته تلونکي په لوی سړک د یو هندو فقیر بابا اتمارام یادگاري ځلی دی
چې په کې د هندو مذهب ځینې انځورونه جوړ دي. دې ځلي ته مخامخ په

جنوب کې يوه څاه ده چې څلورګوټېزه محرابي دروازې لري، له دې دروازو يوه پوړۍ ښکته تر کوهي جوړه ده خو په کوهي کې اوس اوبه نه شته. نواب سکندر علي خان د دې کوهي لپاره ځمکه وقف کړې وه او عامو خلکو به ترې اوبه وړلې.

د مالېر کوټله په شاهي هديره کې د دې ځای د نوابي کورنۍ غړي ښخ دي. د ۱۷۱۲ کال راهيسې دلته د مېرمنو ،ځوانانو او ماشومانو قبرونه دي چې په زياترو يې د مغلي طرز ښښتې او کاشي تيږې کارول شوي دي خو د کوټله بنسټ ايښودونکي بازيد خان قبرد ښار په بله څنډه کې دی.. په شاهي هديره کې تر ټولو ښکلی قبر د نواب سکندر علي خان دی .

د ده د نوابۍ پر مهال د ده مور يو صوفي بزرگ غلام شاه ته ځمکه او د اوقافو پېسې ورکولې چې د دې هديرې ساتنه وکړي.. اوس هم د غلام شاه اولادونو نه ځينې د وقف په پېسو ګوزاره کوي نور يې په مالير کوټله کې دوکانداري او خياطي کوي . ښايي د نواب سکندر خان قبر ته تر ټولو زياته پاملرنه کېږي ځکه دا تل په ښه حالت کې وي. په هديره کې د نواب شېر محمد خان قبر تر ټولو ساده دی او په دې هېڅ سايوان نه شته، د ده وصيت و چې قبريې ساده او خلاص پرېښودل شي د شاهي هديرې د ځېنو قبرونو نه ښکاری چې د نوابي کورنۍ ځېنوغړو د رامپور د نوابانو تر اغېز لاندې شيعه مذهب خپل کړی و ، اود دوی په نومونو کې د علی لقب هم له هاغه وخت راهيسې اضافه شوی دی.

د هديرې پر قبرنو د هر زيارت په ورځ شمعې بلېږي، په دې ورځ د هديرې منجاور دا ځای پاکوي او ځېنې خلک د خپلو مرادونو لپاره دلته راځي خو د نورو ځايونو په شان دغه هديره هم مخ په زوال ده. د دی برج او هغه ديوال چې ورسره جوړ دی اوس ځايي دوکاندارانولخوا د خطر سره مخ دی، هغه دوکانونه چې دې ديوال سره لګيدلي دي د هغوی خاوندان غواړي چې ديوال دی وغورځول شي، د هديری متوليان يې محکمې ته تللي دي.

په مالېر کوټله کې اوس د زاړو اثارو د ساتنې يوه ټولنه جوړه شوې ده او کيدی شي چې دوی دنورو تاريخي اثارو سره سره د هغو زړو کتابونو او تاريخي اسنادو ته هم پام وکړي چې نوابې کورنۍ نه پاتې شوي دي.
د پارلمان يو غړی سردار سنگ مان هلی ځلی کوئ او د نواب شېر محمد خان د قبر د موجودگۍ له امله يې دا د يو ژغورلي ځای په توگه اعلان کړی دی..
د زړو اثارو او کلتور ډايريکټر اندرجيت سنگ ساندهو هم په دې کار کې ملاتړ کوي.

## د لاهور مالېری

زه د لاهور په ماډل ټاون کی د یو لوئ او ښاېسته کور د مېلمنو په کوټه کی ناسته ووم او دلته اېښی شیانو ته ځیر ووم. په دوو دېوالونو د مالېر کوټله د پخوانیو نوابانو رنگین قد ادم انځورونه، یوی خوا ته په لویه هنداره کی د چت سره ځړېدلی فانوس ، د برونزو ، چینی، بلورواو د ښیښی جوړ په رنگا رنگو شیانو دا کوټه را ته یو وړوکی میوزیم په شان ښکارېده. د کوټی د لویو کړکیو د شیشو نه بهر په چمن کی یو مالی (باغبان) نیالگی کښېنول. دا د شفقت خان کور واو ده راته ډېر په اعتماد وویل چی صدرالدین ملنگ نه بلکه د بهلول لودهی د یو جنرال ځوئ و. هغه په دی باور دی چی دده د ملنگئ کیسی د زیارت منجاورو جوړ کړی دی. دا خبره هم غلطه ده چی نوابانو تېغ(توره) او منجاورو دېغ (دېگ) غوره کړو. ایا صدرالدین خبر و چی دده په زیارت به دېگونه پخېږی. ( دا دود د مغلو پر وخت پېل شو) ده د وروستی نواب افتخار علی خان په نوابئ هم نیوکه وکړه چی سکندر علی خان بی اولاده و. ده د ژوند په وروستیو شپېو کی ابراهیم علی خان په فرزندی

واخیستو او دی د گدئ دعوی دار شو. شفقت خان ځان د مالېر کوټله د عیسی خانی ټبر نه گڼی ، په لویدیځ پنجاب کی کارخانی لری او ځوئ یې د پاکستان د پارلیمان غړی دی.

د مالېر کوټله ځینو کورنیو ته د لاهور په فېروز پور سړک مزکه ورکړی شوی وه چی اوس پکی کورونه جوړ دی دا ځائ شېروانی ټاون نومېږي. خو د مالیر کوټله نه راکړه شوی پښتانه زیات تره د لاهور په ماډل ټاون کی ژوند کوئ. او ښایسته کورونه لری. دوئ هڅه کوئ چی په شېروانی کورنئ کی ودونه وکړي.

د سجاد خان مېرمنه د شاهجهان پور شېروانی ده. دی د پاکستان د مظفرگړه نواب نصرالله خان سره هم خپلوی لری چی مېرمنه یې د مالېر کوټله ده.

اخلاق خان دنصرت خانی ټبر نه دی او نیکه یې حیات محمد خان نومېدو. دی بزنس کوئ خو پخپل کور کی یوه کتابتون لری چی د نور هر ډول تاریخ د کتابونو نه علاوه، د مالېر کوټله په اړه یې چاپ شوی هر څه پکی ساتلی دی. ده د مالېر کوټله د مخه ورو کسانو په اړه پورا معلومات لرل. د نواب زوالفقار علی خان د ځوئ رشیدعلی خان په اړه یې وویېل چی ده په ۱۹۰۱ کی د لاهور د گنگا رام روغتون سره نږدی یوه ماڼۍ جوړه کړی وه چی ځینی دېوالونه یې اوس هم شته. ده د لاهور په اېچیسن کالج کی سبق ویېلی و او ورسته د پټیالی مشر وزیر ټاکل شوی و. تر پاکستان جوړېدو په اس گاډی کی گرځېدو، دده مېرمنه انگرېزه وه او اخلاق خان وائ چی قبر یې په لاهور کی دی. د رشید علی خان ځوئ رضا علی په اطالیې کی ژوند کوئ. د رشید ورور خورشید علی خان ځوئ نوشاد علی خان په ترکی او زمبابوې کی د پاکستان سفیر و.

اخلاق خان په دی باور دی چی هندته دشېخ صدرالدین ورتگ ددوئ لپاره ښه و، دوئ متمدنه شول، تعلیم یې وکړ، د ژوند شعور یې وموندلو. ما تری پوښتنه وکړه چی دی خلکو ته ځان ولی د یو افغان او یا د شېروانې په توگه

ورپېژني. هغه وويېل دا زما پېژندګلوی ده او زما لپاره مهمه ده، هر انسان د خپل اصل په اړه د وېنا حق لري.
وقار خان د کمپيوټر انجينير او په انټرنېټ يې د مالير کوټله وېب پاڼه لري.
دده سره د يو محکمې زړه دوسېه په کتابي شکل کې ده او د نيکه نه ورته يوه سيکه پاته ده چې د نواب اسداله خان (۱۷۸۰-۱۷۸۴)د وخت ده.
د وروستي نواب افتخار علي خان د وراره (د الطاف علي خان ځوئ) دکاظم علي خان سره مې هم په دې سيمه کې دده په کور کې وليدل. دې ځان د مالير کوټله د جمال خاني ټبر بولي اومېرمنه يې د کنج پوري د غورغشتي نواب دکورنۍ ده. ده په علي ګړه پوهنتون کې لوړې ازکړې تر سره کړې وې. خو ماشومتوب يې د مالېر کوټله په مبارک منزل کې تېر شوی دی.. ددې ماڼۍ په يو عکس کې يې راته په دوېم پوړ کې خپله کوټه را په ګوته کړه. د ماڼۍ په اړه يې وويل چې دلته د دوېم پوړ نيمه برخه د انګرېز استاځي( وا يسرائ ) لپاره ځانګړې وه . يوه کوټه د موسيقۍ لپاره وه او انګرېزانو مېرمنو به پکې پيانو غږوله. د نواب د کورنۍ ځينو جينکو به هم کله نا کله ورسره ملګرتيا کوله. کاظم علي خان راته وويل زما د کوټې سره جوخته د خياط (درزي) خپله کوټه وه چې د نوابي کورنۍ د نارينو جامې به يې ګنډلې. د خپل نيکه نواب احمد علي خان په اړه يې وويل چې دده ځلور شخصي ساتندويان و چې دوه مسلمانان او دوه به سيکان و. کاظم علي خان په مالېر کوټله کې د خپل نيکه د مزکو او ماڼيو د قانوني وېش په اړه د هندوستان دمحکمې له خوا ليک تر لاسه کړونو هلته يې د ځان لپاره يو سيک وکيل وټاکلو. ما ترې پوښتنه وکړه چې دی به د خپلې برخې جايېداد سره څه کوئ نو راته يې وويېل " زيات امکان ددې دی چې هر څه خرڅ شي او دی پيسې واخلي. زما ددې خبرې په جواب کې چې فکر نه کوئ په دې کار به ددوئ د خاندان ميراث نورو خلکو

لاس ته ولوېږي، کاظم علی خان وویېل " هر څه ختم شی...پاچاهئ او سلطنتونه ورک شول."
په مالېر کوټله کی د دوو کسانو نوم ته اوس هم درنښت کېږي، یو نواب شېر محمد خان او بل شېخ صدرالدین دی.

**شجره**

سرواني
شیخ نهال
شیخ جعفر
شیخ کاکړ
شیخ ابراهیم
شیخ محمود
شیخ موسی
شیخ احمد (جوان مرد)
شیخ ملهی (ملي)
شیخ علي شهباز
شیخ احمد (زنده پیر)
شیخ صدر الدین (۱۴۳۷)
شیخ حسن (مشر)

شیخ موسی (کشر)
شیخ عیسی (د بهلول لودی لمسی)
خان محمد شاه
خان محمد اسحاق خان (خواجه مودود)
فتح محمد خان(فاتح)
بازید خان (سیف الملک)
(نواب) فیروز خان
خضر محمد خان
(نواب) شیر محمد خان
(نواب) غلام حسین خان
(نواب) جمال خان

ماخذونه


۱- د سیک خلکو تاریخ ۱۴۶۹ -۱۹۷۸ ډاکټر ګوپال سنګ - نوی ډیلی
۲- تاریخ پنجاب - سېد محمد لطیف ۱۸۸۸ بیا چاپ- تخلیقات لاهور ۱۹۹۴
۳ - لودی پښتانه- پوهاند عبدالشکور رشاد کابل دولتي مطبعه ۱۳۳۶ هـ ش
۴- تاریخ خان جهاني و مخزن افغاني- خواجه نعمت الله هروي
ژباړه: ډاکټر محمد بشیر حسین
۵- غزني - کابل او افغانستان - جي - ټي ویګنی - بیا چاپ سنګ میل چاپ اداره لاهور ۱۹۸۲
۶- حیات افغاني - محمد حیات خان ژباړه : عبدالطیف یادطلبي، دانش خپرندویه ټولنه ، ۲۰۰۷

۷- په پنجاب کې یو کال، هربرټ – بی – ایډورډز، ۱۸۵۱
۸- حاکمان پنجاب، اسد سلیم شیخ، اظهار سنز لاهور، کال نامعلوم
۹- د ملیرکوټله تاریخ، نواب افتخار علي خان ۲۰۰۰
۱۰- د کوټله د مهمو افغانانو حال – د ملیر کوټله خان عنایت علي خان، ملکی او پوځی گزېټیېر ۱۸۸۲ د لاهور کتابخانه.
۱۱- د هندوستان سوشیالوجی یوه برخه.
خپلولی او سیاسی نظام. د مالیرکوټله افغان شیرواني مشران ۱۹۴۷ – ۱۴۵۴
د ریتابراره تحقیقی مقاله ۱۹۹۴
۱۲- افغان شرفا او مغل، ریتاجوشي، وکاس چاپ اداره نوی ډلی ۱۹۸۵.
۱۳- شیر شاهی تاریخ، د عباس سروانی تالیف، دکتور دولت محمد ترجمه، کابل افغانستان، ۱۳۵۴.
۱۴- پښتانه د تاریخ په رڼا کې ، بهادر شاه ظفر کاکاخیل، یونیورسټی بک ایجنسی، پیښور، ۱۹۶۵.
۱۵- د هندوتسان په مسلمانانو کې تفریق، د فرانسس رابنسن مقاله، کیمرج پوهنتون ۱۹۷۱، ۱۸۶۰ - ۱۹۲۳
۱۶- سیکان او افغانان، شهامت علی خان، ۱۸۳۹، بیا چاپ امر پرکاشان ۱۹۸۷، نوی ډلی.
۱۷- تواریخ خورشید جهان، ۱۳۱۱ هجري، شیر محمد خان ګنډاپور (المکتبه الحقانیه، محله جنګی پیښور).
۱۸- احمد شاه درانی، ګنډا سنګ ، ۱۹۵۹، رینا آرټ پریس لاهور، بیا چاپ ۱۹۸۱.
۱۹- تمدن هند ، د سیدعلي بلګرامي ترجمه، ډاکټر ګستاولی بان، فرانسوی محقق، نیټه نامعلوم.

۲۰-تذکره روسائ پنجاب ( پنجاب چیفس) سر لیپېل گریفن-کرنل مېسی ۱۹۱۰ ژباړه سید نوازش علی ۱۹۳۲ ( دوېم جلد) بېا چاپ سنګ میل پبلیکېشن لاهور ۲۰۰۲

۲۱- د کابل د سلطنت حالات. ماونټ ستورټ الفنستون ۱۸۱۵، بیا چاپ ۱۹۹۲.

۲۲- د خیبر دره، د سلطنټ او حملو تاریخ، پیډی ډوکرټی ۲۰۰۷، فېبر او فېبر لندن.

**۲۳**-د هندوستان کیسه، مايیکل ووډ، ۲۰۰۷، رینډم هاوس لندن.

**۲۴**- د پنجاب او د شمال لوېدېځ سرحدي صوبې قاموس-سر ډېنزېل ایبټسن، سر اېډورډ مېکلاګن او اېچ اې روز- لومړی برخه-بېا چاپ سنګ میل پبلیکېشن لاهور- نېټه نامعلومه-

**۲۵**- په مالېر کوټله او لاهور کی د شیخ صدرالدین د کورنې غړي

## یادونه

ددې کتاب لپاره په څېړنو کې ماسره بې شمېرو خلکو مرسته کړې ده.

په مالیر کوټله کې. محمد اقبال شیرواني او اجمل شیرواني چې د خپلې کورنۍ عکسونه او پخواني پاڼې یې راڅرګند اوځینی یې د چاپ لپاره کاپی کړل- د نواب شیرمحمد خان انسټی ټیوټ مشر پروفیسر زنیت الله خان او د هغه میرمنې.. دډېلی د جواهر لعل نهرو پوهنتون استاد عبدالخالق رشید. عبدالنافع همت او داود اعظمی چې ځیني کتابونه یې راته وموندل. په لاهور کی وقار خان ، اخلاق علی خان او زاهد خان، د وروستی نواب وراره نوابزاده کاظم علی خان ، شفقت خان او یو شمېر نورو پښتنوچی د خپلو کورنېئوپه

اړه یې معلومات راکړل- ، **میروېس میاخېل جعفر** هاند او د اسرار کریمزي نه مننه چې د کمپوز برخه یې سمباله کړه.